# د روان جهاد د مشروعیت او فرضیت دلائل:

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ○

**الحمد لله وحده، صدق وعده واعز جنده وهزم الاحزاب وحده والصلوة والسلام علي قائد المجاهدین محمد وعلي اله واصحابه اجمعین .**

په (۱۴\جوزا\۱۳۹۷ هش ) په کابل کې د معاصر فرعون اجیرو درباریانو یوه اوږده مقاله خپره کړه چې نوم یې د فتوا پرې کیښود.

غواړو د دغې باطلې په اصطلاح فتوی په غبرګون کې لوستونکو ته له شرعي پلوه د روان جهاد په مشروعیت او فرضیت څو کرښې ولیکو.

د معاصر فرعون اجرتي مفتیانو د خپلې په اصطلاح فتوی په شپږ ویشتو صفحو کې په افغانستان باندې د امریکا او د هغوی د متحدینو تجاوز، نه عبارتا، نه اشارتا او نه هم دلالتا ذکرکړی دی، داسې پرې ګونګ شوي دي لکه له سره چې چا د افغانستان په حریم تجاوز کړی نه وي.

علت یې ښکاره دی، ټول پوهیږي چې د همدغو استخدام شوو څیرو روزي او کفالت د امریکایانو لخوا ترسره کیږي، د دوی اوږې د کافرانو په احساناتو درنې دي ، امریکایي اشغالګرو له دوی سره احسان کړی، نو یې ځکه د قلمونو خوله د مجاهدینو په ضد په څرخیدو ده.

په (۲۰۰۱م ) کال کې د امریکا د هغه مهال جمهور رئیس بوش د افغانستان د ځوریدلي ولس په خلاف د هغه په وینا صلیبي جګړه په داسي حال کې اعلان کړه چې افغانان وار له مخه د شوروي اتحاد له خوا اشغال او تپل شوی جګړې سخت ځپلی وو، لایې د ارام سا نه وه اخیستې چې د بوش له خوا د صلیبې جګړې اعلان وشو او د افغانستان حریم د کفر تر یرغل لاندې ونیول شو.

دا کوم تبلیغات نه دي؛ بلکې ټوله نړۍ یې شاهده ده او ثبت شوي اسناد پراته دي، د بوش په حکم امریکایي اشغالګرو او د هغوی متحدینو لومړی زروګونه او بیا وروسته لسګونه زره عسکر چې د جګړې په ټولو وسایلو سمبال او د نړۍ په کچه پر مختللو وسلو مجهز وو، د ډول ډول جنګي طیارو

او مصنوعي سپوږمکیو ملاتړ ور سره ملګری وو ، د ځمکنیو ټانکونو په مټ په پوره زور او ځواک د افغانستان په پاک حریم باندي را وختل، هغه مهال د هیواد پیاوړو علماء کرامو په اجماع د یرغلګرو کافرانو په خلاف د وسلوال جهاد فرض عین کیدو فتوا ورکړه او د افغانستان په ټولو اتباعو یې غږ وکړ، چې په ټول توان د کافرانو په خلاف ودرېږي، له اسلام او دیني معتقداتو او د هیواد له حریم څخه په کلکه دفاع وکړي.

په ټوله اسلامي نړۍ کې هغو مراجعو چې د ضرورت په وخت کې د اسلام د احکامو په رابطه رجوع ورته کېده یوې هم د افغانستان د عالمانو د یادي فتوا په مخالفت کې کوم غږ نه دی اوچت کړی، بلکې بالعکس یې په مختلفو لارو د افغانستان د جهاد ملاتړ وکړ.

هغه مهال د عالمانو فتوی د شرعي نصوصو ، د فقهاؤ د صریحو عباراتو په رڼاکې صادره شوه چې د حنفي فقهي له معتمدو کتابو څخه نقل شوي وو ، چې لاندې یې څو بېلګې د لوستونکو مخې ته ږدم.

د امریکایانو او د هغوی د متحدینو په خلاف جهاد دفاعي جهاد دی او د نفیر عام صورت دی ، هغه شرائط چې په هجومي (تعرضي ) جهادکې غوښتل کېږي، د فقهاؤو په اتفاق په دفاعي جهاد او د نفیر عام په صورت کې اعتبار نلري.

د امریکا تجاوز د پیل په وخت کې امیرالمؤمنین ملامحمد عمر (مجاهد ) رحمه الله د افغانستان مشروع امیر او د جهادي صف رهبر وو ، هغه په اسلامي امت غږ وکړی چې متجاوزو امریکایانو او د هغوی متحدینو د افغانستان مسلمان هیواد په حریم یرغل کړی دی، د اسلامي حاکمیت، دیني معتقداتو او د مسلمانانو د خاوري په دفاع کې زموږ سره مرسته وکړئ، په دې سره د جهاد د رهبر له خوا د نفیر عام (عام پاڅون) صورت متحقق شو ځکه مسلمانان کمزوري وو ، په حریم یې تجاوز وشو ، په ټول ملت باندې نفیر او د کفار په ضد پاڅون او راوتل فرض شول.

**د افغانستان د کریم دفاع د مسلمان امت وجیبه اوفریضه :**

د افغانستان د حریم، دیني معتقداتو او د مظلوم ولس د سر او مال دفاع په مسلمان امت فرض عین ده، د امت فقهاء په دې متفق دي ، که کافران د

اسلام په وطن هجوم وروړي ، د هغه وطن په ټولو او سیدونکو باندې عام پاڅون او را پورته کیدل لازمیږي، چې همدغه نفیر عام دی، په دې صورت کې بیا اړتیا نشته چې کوم امام یا جهادي رهبر به له اسلامي امت څخه د مرستي او قیام غوښتنه کوي، بلکي پرته له کومي غوښتني او پرته د سلطان له موجودیت څخه د مسلمان امت په ذمه باندي جهاد فردا فردا فرض ګرځي، د دریو حالتونو په تحقق د نفیرعام(عمومي پاڅون) صورت تحقق پیداکوي:

لومړی حالت: چې د کافرانو د یرغل او تجاوز په خلاف د مسلمانانو د دفاع جګړه دوام وکړي.

دویم حالت: مسلمانان سړي او ښځي یا د دوی اولادونه چې د کافرانو په لاس کې اسیران شي، تر هر ځای پوري چې مسلمان امت پرې خبرېږي خلاصون یې پر دوی فرض عین دی.

دریم حالت: د مسلمانانو تر هرځای پوري چې د جګړې خبر رسېږي، د هغو ټولو مسلمانانو په هر فرد باندي دکافرانو په خلاف په ځان او مال جهاد فرض ګرځي.

په معاصره دنیاکې یوازي دا نه چې د مسلماني نړۍ اتباعوته خبر رسېدلی دی؛ بلکي په معاصره میډیا خصوصا سوشل میډیا یې د افغانستان په حریم دکافرانو هجوم او تجاوز، بمبارونه ، جګړې، د مسلمانانو قتل عامونه او په زندانونو کې د مسلمانانو ښځي او بچیان تر شکنجو لاندي ساتل، وژني او اعدامونه په غوږونو اوري او په سترګو یې مشاهده کوي.

مسلمان حکومتونه او ولسونه له جهادي فریضې او وجیبې څخه په هیڅ ډول خلاص نه دي، په دې رابطه د فقهاؤ تصریحات په لاندي نقولوکې کتونکي مطالعه کولای شي:

قال أبوبكر الجصاص في احكام القرآن { وَمَعْلُومٌ فِي اعْتِقَادِ جَمِيعِ الْمُسْلِمِينَ أَنَّهُ إذَا خَافَ أَهْلُ الثُّغُورِ مِنْ الْعَدُوِّ، وَلَمْ تَكُنْ فِيهِمْ مُقَاوِمَةٌ لَهُمْ فَخَافُوا عَلَى بِلَادِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ وَذَرَارِيِّهِمْ أَنَّ الْفَرْضَ عَلَى كَافَّةِ الْأُمَّةِ أَنْ يَنْفِرُ إلَيْهِمْ مَنْ يَكُفُّ عَادِيَتَهُمْ عَنْ الْمُسْلِمِينَ. وَهَذَا لَا خِلَافَ فِيهِ بَيْنَ الْأُمَّةِ، إذْ لَيْسَ مِنْ قَوْلِ أَحَدٍ مِنْ الْمُسْلِمِينَ إبَاحَةُ

الْقُعُودِ عَنْهُمْ حَتَّى يَسْتَبِيحُوا دِمَاءَ الْمُسْلِمِينَ وَسَبْيَ ذَرَارِيِّهِمْ . أحكام القرآن للجصاص , تفسير سورة براءة آية (٤١) ج(٣١٢\٤) الناشر: دار إحياء التراث العربي – بيروت – عدد الأجزاء (٥) .

**ژباړه:** علامه ابوبکر (الجصاص ) رحمه الله په خپل کتاب احکام القرآن کې د مسلمان امت د فقهاؤ متفق حکم داسې نقل کړی دی، هغه وايي: ټول مسلمانان په دې معتقد دي چې د اسلامي وطن د سرحداتو ساتونکي قطعات د دښمن له هجوم (تعرض ) څخه په خوف کې شوه او دوی د دفاع توان نه درلود ، له دښمن څخه د ځانو ، اولادو په قتل او حبس ووېرېدل او په اسلامي خاوره ووېرېدل چې د دښمن تر تسلط لاندې کېږي، په دغه صورت کې په ټول مسلمان امت باندې فرض دی چې له دوی څخه دفاع وکړي او د دښمن ضرر ترې دفعه کړي، په دې حکم کې د امت فقهاء اختلاف نلري، ځکه هيڅ مسلمان (مجتهد ) په دې قائل نه دی چې مسلمان امت ته دي مباح وي چې (لاس ترزنې) کښېني اوکافران دي د مسلمانانو وينې وبهوي، ښځې او اولادونه يې دکافرانو په زندانوکې شکنجه او ووژل شي.

علامه ابوبکر جصاص په احکام القرآن کې د نفير عام په مهال په ټولو باندې جهاد وباله ، دهمدې مدعی د اثبات په غرض يې ګڼ شمېر آيتونه د دليل په توګه راوړي دي، چې يوه برخه يې د کتونکو د مطالعې مخې ته ږدم.

وَقَالَ الله تعالى: {فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ وَخُذُوْهُمْ} [التوبة: **٥**] أحكام القرآن للجصاص, تفسير سورة براءة آية (**٤١** ) ج(**٣١٢\٤** ) .

**ژباړه:** الله جل جلاله فرمايلي دي: مشرکين ووژنئ، هر چېرې چې پرې برلاسي شوئ .

وقال الله تعالى {وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِيْنَ كَآفَّةً كَمَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ كَآفَّةً ؕ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ} [التوبة:**٣٦**] أحكام القرآن للجصاص،تفسير سورة براءة آية (**٤١** ) ج(**٣١٢\٤** )

**ژباړه:** الله جل جلاله فرمايلي دي: په اجتماعي ( ډلييزه ) توګه له مشرکانو سره جګړه وکړئ، لکه دوی چې په اجتماعي ډول له تاسو سره جنګېږي، او

په دې پوهه شئ چې الله د متقیانو ملګری دی. (متقیان هغه څوک دي چې د الله نافرمان نه وي).

وَقَالَ الله تعالى: {اِلَّا تَنْفِرُوْا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ وَّ يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ} [التوبة: ۳۹] أحكام القرآن للجصاص, تفسير سورة براءة آية (۴۱) جـ(۳۱۲\۴).

**ژباړه:** الله جل جلاله فرمایلي دي: (د نفیر عام په وخت کې) که تاسو جهاد ته ونه وزئ، (نو الله به) تاسو په دردناک عذاب کې ښکېل (هلاک) کړي، ستاسو په عوض کې به الله نور قومونه پیدا کړي (هغه به د الله نافرماني نه کوي بلکي په بیړه به د کافرانو خلاف جګړه کوي.)

وَقَالَ الله تعالى: { اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّ ثِقَالًا وَّ جَاهِدُوْا بِاَمْوَالِكُمْ وَ اَنْفُسِكُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ○}[التوبة: ۴۱] أحكام القرآن للجصاص، تفسير سورة براءة آية (۴۱) جـ(۳۱۲\۴).

**ژباړه:** الله جل جلاله فرمایلي دي: (اې مؤمنانو د کفارو د تجاوز په صورت کې د خدای د لارې) جهاد ته ووزئ، ځوانان او زاړه (په سختي او اساني کې، مسلح او غیر مسلح) او مالونه د الله په لاره (جهاد) کې مصرف کړئ، (د الله د حکم برلاسه کېدو په نیت) په ځان او مال جهاد کول (سمدلاسه او د عاقبت په اعتبار) ستاسو لپاره غوره عمل دی، که تاسو په دې پوهېږئ.

وَقَالَ الله تعالى: { يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خُذُوْا حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ اَوِ انْفِرُوْا جَمِيْعًا ○ } [النساء: ۷۱] أحكام القرآن للجصاص, تفسير سورة براءة آية (۴۱) جـ(۳۱۲\۴).

ژباړه: الله جل جلاله فرمایلي دي: اې د ایمان څښتنانو (د دښمن د سختي مقابلې لپاره) امادګي ونیسئ، نو (د دښمن مقابلې ته د ډلو په ترتیب) یوه په بله پسې ووزئ، یا (ټول په اجتماعي ډول) یوځای ووزئ. ایسرالتفاسر. او تفسیر میسر.

**د معاصر جهاد تکتیکونه سپیڅلي دي:**

په پورتني (خذوا حذركم) آیت کې الله جل جلاله نه د آمدګي کیفیت تعیین کړی دی او نه کمیت، د ستر عالمانو له نظره په دې کې دا حکمت دی چې د

شرعي سیاست او مصلحت له مخه په هر عصر او زمانه کې د ګرمي او سړې جګړې رونق بدلېږي، د هر عصر د جهاد اړتیاوي، تکتیکونو او وسائلو کیفیت او کمیت بېلابېل وي، نو ځکه د امادګي او استعداد کیفیت، تکتیک او کمیت د معاصر جهاد مسلکي ماهرینو او فني اشخاصو رایې ته پرېښودل شوی دی، چې د کافرانو په ځالو درانه انفجارات او استشهادي بریدونه هم د معاصر جهاد د تکتیکي مصحلت برخه دي.

ابوبکر جصاص رحمه الله ویلي دي: { فَأَلْزَمَ مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْقِتَالِ وَلَهُ مَالٌ فَرْضَ الْجِهَادِ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ } أحكام القرآن للجصاص، تفسير سورة براءة آية (٤١) ج (٣١٢\٤) الناشر: دار إحياء التراث العربي – بيروت - عدد الأجزاء (٥).

**ژباړه:** الله جل جلاله په هغو اشخاصو چې د شرعي جهاد اهلیت ولري، له دې سره سره د مال څښتن هم وي، په هغوی باندي یې په سر او مال جهاد فرض کړی دی.

(الكليات الخمس التي اعتبرت في كل ملة) وهي (حفظ الدين بالجهاد فان التضاد) فيه (يقتضي التدافع) فيفضي إلى مفاسد كثيرة (فالشافعية عللوا) الجهاد (بالكفر والحنفية) عللوا (بالحرابة) وهو الحق فان كفر الغير لا يضر المؤمن إلا حرابته فهي الموجبة لقتلهم وجهادهم. فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت، لمولانا عبدالعلي بحرالعلوم (۵۳\۴).

علامه عبدالعلي (بحرالعلوم) په فواتح الرحموت کتاب ویلي دي: د اسلام مقدس دین تحفظ د خدای جل جلاله د لارې په جهاد کېږي، د حنفي مذهب فقهاوو په دې تصریح کړې ده چې د کافرانو کفر د جهاد علت نه دی، بلکې د کافرانو محارف او جګړېز دریځ د جهاد علت دی، یعنی د کافر کفر د جهاد د وجوب سبب نه ګرځي، بلکي د وجوب علت یې د محاربو کافرانو جګړئیز دریځ دی. فواتح الرحموت.

همدغه علت په افغانستان کې موجود دی، ځکه د کافرانو مجهز قوتونه د دنیا له بله سره راغلي دي د افغانستان په عصمه حریم یې تجاوز کړی دی، نو د کافرانو جګړئیز دریځ ترې جوت شو.

قال الله تعالى { لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَ لَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَ تُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ○ } [الممتحنة: ٨].

**ژباړه:** الله (جل جلاله) تاسو له هغو (کافرانو ) سره چې د دین په مقابله کې له تاسو سره نه دي جنګېدلي، او تاسو يې (په زور ) له وطن څخه نه یاست ایستلي، له دوی سره د زړه سواند چلند او عدالت کولو څخه نه منع کوي، په تحقیق الله انصاف کوونکي خوښوي.

په پورته آیت کې الله جل جلاله په ښکاره ډول وفرمایل: چې له غیر محارب کافرانو سره له زړه سواند چلند او په حکم کې له عدالت څخه تاسو منع نه یاست، ترې جوته شوه چې د جهاد د وجوب سبب د کافرانو محارب دریز او جګړه ده، نه د دوی کفري عقیده، موږ وینو او مشاهده کوو، چې په اسلامي نړۍ کې اهل ذمه کافران اوسېږي، اسلام د هغوی په سر او مال باندي دتجاوز اجازه چاته نه ده ورکړې.

د اسلامي شریعت په زېرمه کې داسې یو علت پاتې نه دی چې هغه دي د مسلمانانو له ذمي څخه د جهاد د فرضیت وجیبه ساقطه کړي، بلکې د عامه مسلمانانو په ذمه باندي د سپېڅلي جهاد د فرضیت ټولو علتونو، اسبابو او شرائطو تحقق موندلی دی، همدا لامل دی چې د شرعي مسلمو حقوقو په دفاع کې د محاربو متجاوزو کافرانو په خلاف وسلوال جهاد د شرعي مصلحت له مخه د سترو متدينو عالمانو په اجماع واجب او لازم ګڼل شوی دی، په دې مهال د محاربو کافرانو په خلاف د جهاد ترک (پرېښودل ) فساد عظیم دی، او نه بښونکی جنایت دی ځکه د جهاد په ترک په ټولیزه توګه د مسلمانانو اجتماعي مبرم حقوق یو مخیزه پایمالېږي او له منځه ځي.

د فقهاوو لاندي تصریحات د فرض عیني جهاد تحقق اثباتوي:

وفي تبيين الحقائق {النَّفِيرِ الْعَامِّ وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْله تَعَالَى { انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا } أَيْ اُخْرُجُوا إلَى الْجِهَادِ شَبَابًا وَشُيُوخًا أَوْ رُكْبَانًا وَمُشَاةً أَوْ فُقَرَاءَ وَأَغْنِيَاءَ وَقَدْ جَاءَ فِي التَّفْسِيرِ خِفَافًا شَبَابًا أَغْنِيَاءً وَثِقَالًا شُيُوخًا فُقَرَاءَ وَهَذَا أَبْلَغُ. تبيين الحقائق، كتاب السير (٢٤٢/٣). مكتبة دار الإشاعة.

**ژباړه:** (علامه زیلعي) په تبیین الحقائق کتاب کې ویلي دي: د نفیر عام د جهادي حکم اصل د( سورت التوبة:۴۱ )آیت دی الله جل جلاله فرمايلي دي:( ووزئ سپک او دارانه ) یعني ووزئ جهاد ته ځوانان او زاړه ، یا سپاره او پلي، یا مسکینان او شتمن، په تحقیق د (خفافًا ) په تفسیر کې ځوانان او غنیان راغلي دي او د (ثقالاً ) په تفسیر کې مسکینان او د زاړه عمر څښتنان راغلي دي او دا ښه تفسیر دی.

حاشية الشلبي : [ أَنَّ التَّنْفِيرَ خِفَافًا وَثِقَالًا فِيمَا إذَا كَانَ التَّنْفِيرُ عَامًّا بِأَنْ لَا يَنْدَفِعَ شَرُّ الْأَعْدَاءِ بِالْبَعْضِ فَحِينَئِذٍ يُفْتَرَضُ عَلَى الْكُلِّ لِتَحْصِيلِ الْمَقْصُودِ وَهُوَ قَهْرُ الْكُفَّارِ وَدَفْعُ شَرِّهِمْ ...(قَوْلُهُ أَوْ فُقَرَاءَ وَأَغْنِيَاءَ) أَيْ أَوْ مَهَازِيلَ وَسِمَانًا أَوْ صِحَاحًا وَمَرْضَى. اهـ]
حاشية الشلبي على هامش تبيين الحقائق كتاب السير (٢٤٢\٣) . مكتبة دار الإشاعة.

**ژباړه:** علامه شهاب الدین الشلبي د تبیین الحقائق په حاشیه کې ویلي دي: نفیر عام هغه مهال دی چې د یوې ډلې افرادو په وسیله د دښمن شر دفع کیدلای نشي، په همدې مهال په ټولو باندي د کافرانو د تجاوز په خلاف جهاد فرض عین دی، تر څو چې د دوی شر دفعه کړي ، او د متن دا قول(فقراءَ واغنیاءَ ) یعني ډنګر او چاغ ، یا روغ او ناروغ ترې مراد دي.

په حاضر حال کې د افغانستان د مسلمانانو حالت د خوف تر درجې مخ په وړاندي تللی دی، د افغانستان اسلامي هیواد په حریم باندي محاربو کافرانو په دست جمي توګه په ټولو هوایي او زمیني جنګي وسائلو مجهزو فوځونو هجوم را وړی دی، د مسلمانانو حریت او استقلال یې غصب کړی دی، شرعي نظام یې چپه کړی دی، (۱۷) کلونه یې مسلسل مظلوم مسلمانان قتل عام کړي دي، د مظلومو مسلمانانو په ګرېوانو کې د ظلم او بربریت کرغېړني منګولي خښې کړي دي، د مسلمانانو ښځې او لادونه یې په زندانو کې تر ظلمو او شکنجو لاندي وژلي دي، او لا دغه حالت ته دوام ورکوي.

ټولنیز ( اجتماعي ) حاکمیت یې غصب کړی دی، د اسلام د مقدس دین ارزښتونه او معتقدات یې محوه کړې دي، په ځای یې د سیکولرزم د ترویج په غرض د کرغېړني کفري ډیموکراسۍ تحقق او تطبیق په د اساسي قانون په

چوکاټ کې اعلان کړی دی، د جنایاتو او جرمونو داسې صورت نه دی پاتې چې کافرانو هغه زموږ په هیواد کې عملي کړی نه وي.

**مستطرفه :**

حکایت کیږي، چې د یو قوم خان په ډېر شوق یو ټوپک په دې سبب په لوړ قیمت اخیستی وو چې دا ټوپک اصل دی، د قوم یو سړی په دې صفت ډېر مشهور وو چې د ټوپکو مسلکي او په پېژندلوکې یې ماهر دی، دغه شخص د خان صیب مېلمه شو، خان خپل لوړ قیمته ټوپک د تشخیص په غرض ور ښکاره کړی، ماهر شخص چې ټوپک ولیدی ټوپک اصیل نه دی او په مېل کې عیب لري، سړي فکر وکړ که ریښتیا ووایم خان صیب خفه کېږي او ځما شهرت او مهارت ته هم زیان رسېږي، نو یې په ځواب کې ورته وویل : چې د خان صیب په ټوپک یو خدای پوهېږي .

نو د هغو مسلمان حکومتونه او ولسونه چې د اسلام د سپېڅلي شریعت په حکم د دوی په ذمه د مظلومو مسلمانانو دفاع فرض عین ګڼل شوې ده، او دوی تغافل او تجاهل له دې امله اختیار کړی دی چې راحت طلبه دي یا یې دنیوي ګټې متضرر کېږي، یا ځانونه تر فشار لاندې احساسوي، نو د دوی د اعذارو په مقبولیت او اعتبار یوازې لوی خدای پوهېږي چې د ده په وړاندې به څومره اعتبار لري ؟

**د جهاد د فرضیت په اړه د فقهي ګکم:**

وفي در المختار (وَفَرْضُ عَيْنٍ إنْ هَجَمَ الْعَدُوُّ فَيَخْرُجُ الْكُلُّ وَلَوْ بِلَا إذْنٍ) وَيَأْثَمُ الزَّوْجُ وَنَحْوُهُ بِالْمَنْعِ ذَخِيرَةٌ .

( قَوْلُهُ إنْ هَجَمَ الْعَدُوُّ ) أَيْ دَخَلَ بَلْدَةً بَغْتَةً ، وَهَذِهِ الْحَالَةُ تُسَمَّى النَّفِيرُ الْعَامُّ قَالَ فِي الِاخْتِيَارِ : وَالنَّفِيرُ الْعَامُّ أَنْ يُحْتَاجَ إلَى جَمِيعِ الْمُسْلِمِينَ ( قَوْلُهُ فَيَخْرُجُ الْكُلُّ ) أَيْ كُلُّ مَنْ ذُكِرَ مِنْ الْمَرْأَةِ وَالْعَبْدِ وَالْمَدْيُونِ وَغَيْرِهِمْ قَالَ السَّرَخْسِيُّ ، وَكَذَلِكَ الْغِلْمَانُ الَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا إذَا أَطَاقُوا الْقِتَالَ فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَخْرُجُوا وَيُقَاتِلُوا فِي النَّفِيرِ الْعَامِّ وَإِنْ كَرِهَ ذَلِكَ الْآبَاءُ وَالْأُمَّهَاتُ . رد المحتار كتاب الجهاد، (٢٤٢١٣) مكتبة رشيدية كوئته .

**ژباړه:** (علامه حصفکي ) په در المختار کتاب کې ویلي دي: جهاد هغه مهال فرض عین دی چې (د دار الاسلام په یوه ښار باندي ) دښمن هجوم راوړي، ټول مسلمانان به قیام کوي د دښمن په خلاف جهادته به وزي که څه هم دوی ته د جهاد اجازه نه وي شوې، په همدې مهال که ښځه جهاد ته وتله او مېړه یې ممانعت کاوه مجرم دی، همدا راز د ده په شان نور کسان.

علامه ابن عابدین د درالمختار د همدې عبارت په شرحه کې ویلي دي: دا قول ( ان هجم العدو ) یعني : که دښمن په کوم ښار باندي نابېره یرغل وکړی، دغه حالت د ( شریعت په اصطلاح کې ) د نفیرعام په نوم یادېږي، [ه اختیارکتاب کې راغلي دي: هغه حالت ته نفیر عام ویل کېږي چې د دښمن په دفاع کې ټولو مسلمانانو ته اړتیا موجوده وي، (ټول به جهادته وزي ) یعنی ښځه د مېړه له اجازې پرته، مریی د بادار له اجازې پرته او پوروړی د پور ورکوونکي له اجازې پرته او داسې نور، علامه سرخسي ویلي دي: همداراز هغه تنکي ځوانان چې لاتر اوسه بالغ شوې نه وي، مګر د جګړې توان لري، باک نلري که د نفیرعام په مهال د کافرانو په جګړه کې ونډه واخلي که څه هم پلرونه او میندي یې نه خوښوي.

وفي بحرالرائق { وَالْهُجُومُ الْإِتْيَانُ بَغْتَةً ، وَالدُّخُولُ مِنْ غَيْرِ اسْتِئْذَانٍ كَذَا فِي الْمُغْرِبِ ، وَالْمُرَادُ هُجُومُهُ عَلَى بَلْدَةٍ مُعَيَّنَةٍ مِنْ بِلَادِ الْمُسْلِمِينَ فَيَجِبُ عَلَى جَمِيعِ أَهْلِ تِلْكَ الْبَلْدَةِ وَكَذَا مَنْ يَقْرُبُ مِنْهُمْ ... إلَى أَنْ يَجِبَ عَلَى جَمِيعِ أَهْلِ الْإِسْلَامِ شَرْقًا وَغَرْبًا ... وَكَانَ مَعْنَاهُ إذَا دَامَ الْحَرْبُ بِقَدْرِ مَا يَصِلُ الْأَبْعَدُونَ وَبَلَغَهُمْ الْخَبَرُ ... إذَا دَخَلَ الْمُشْرِكُونَ أَرْضًا فَأَخَذُوا الْأَمْوَالَ وَسَبَوْا الذَّرَارِيَّ ، وَالنِّسَاءَ فَعَلِمَ الْمُسْلِمُونَ بِذَلِكَ وَكَانَ لَهُمْ عَلَيْهِمْ قُوَّةٌ كَانَ عَلَيْهِمْ أَنْ يَتْبَعُوهُمْ حَتَّى يَسْتَنْقِذُوهُمْ مِنْ أَيْدِيهِمْ مَا دَامُوا فِي دَارِ الْإِسْلَامِ فَإِذَا دَخَلُوا أَرْضَ الْحَرْبِ فَكَذَلِكَ فِي حَقِّ النِّسَاءِ ، وَالذَّرَارِيِّ مَا لَمْ يَبْلُغُوا حُصُونَهُمْ وَجُدُرَهُمْ .البحرالرائق كتاب السير(۷۸\۱۷) عدد الأجزاء (۸).

**ژباړه:** علامه ابن نجیم په بحرالرائق کتاب کې ویلي دي: هجوم ناڅاپه یرغل او پرته له اجازې داخلېدوته ویل کېږي، مطلب ترې هغه هجوم دی چې د

مسلمانانو په معلوم ښار باندي کافران يرغل وکړي، د هغه ښار په ټولو اتباعو باندي واجب دی چې د کافرانو څخه د خپل ښار دفاع وکړي (که د دې ښار اوسېدونکي له دفاع څخه عاجزوو) بيا هغه ته نژدې مسلمانانو باندي دفاع واجب ده، ثم وثم آن تردې چې له شرق څخه بيا تر غرب پوري د اسلام په ټولو اهاليو دفاع واجب ګرځي، د دې معنی داسي ده چې د کافرانو په خلاف جګړه دوام وکړي آن چې تر لېري مسلمانو هيوادو چې د جګړې خبر رسېږي په همغو ټولو باندي جهاد واجب ګرځي، کله که کافران د مسلمانانو وطن ته ننوزي، (د مسلمانانو په وژلو لاس پوري کړي) مالونه يې قبضه کړي، ښځې او اولادونه يې زنداني کړي، په دې پښه که د نړۍ مسلمانان خبر شي که يې په توان کې وو، په ټولو واجب دی چې مسلمانان او د هغوی مالونه د دوی له منګولو وژغوري، تر څو چې يې مالونه دارالحرب ته نه وي رسولي، په زنداني ښځو او اولادو پسې به دارالحرب ته هم داخلېږي ترڅو چې په دارالحرب کې خپلو قرارګاووته نه وي رسولي . بحرالرائق .

وفي رد المحتار { قَالَ فِي الْفَتْحِ : وَكَانَ مَعْنَاهُ إذَا دَامَ الْحَرْبُ بِقَدْرِ مَا يَصِلُ الْأَبْعَدُونَ وَيَبْلُغُهُمْ الْخَبَرُ وَإِلَّا فَهُوَ تَكْلِيفُ مَا لَا يُطَاقُ بِخِلَافِ إنْقَاذِ الْأَسِيرِ وُجُوبُهُ عَلَى الْكُلِّ مُتَّجِهٌ مِنْ أَهْلِ الْمَشْرِقِ وَ الْمَغْرِبِ مِمَّنْ عَلِمَ ... وَفِي الْبَزَّازِيَّةِ : مُسْلِمَةٌ سُبِيَتْ بِالْمَشْرِقِ وَجَبَ عَلَى أَهْلِ الْمَغْرِبِ تَخْلِيصُهَا مِنْ الْأَسْرِ. رد المحتار كتاب الجهاد , (٢٤٢\٣) مكتبة رشيدية كوئته .

**ژباړه:** علامه ابن عابدين په رد المحتار کتاب کې ويلي دي (د ګردي نړۍ په مسلمانانو د جهاد د وجوب معنی دا ده: چې د کافرانو د تجاوز په خلاف د مسلمانانو جګړه دوام وکړي او لېري هيوادوته د جګړې خبر ورسېږي نو جهاد پرې واجب دی، او له مشرق څخه تر مغرب پوري چې څومره مسلمانان په دې خبرېږي چې دکافرانوپه لاس کې مسلمانان اسيران شوې دي خلاصون يې پر ټولو مسلمانانو واجب دی او په فتاوی البزازيه کې راغلي دي: که يوه مسلمانه ښځه په مشرق کې کافرانو اسيره کړې وه، د مغرب مسلمانان پرې خبر شول خلاصون يې پرې واجب دی. رد المحتار.

وفي الهداية للمرغيناني { فإن هجم العدو على بلد وجب على جميع الناس الدفع تخرج المرأة بغير إذن زوجها والعبد بغير إذن المولى لأنه صار فرض عين وملك اليمين ورق النكاح لا يظهر في حق فروض الأعيان كما في الصلاة والصوم. الهداية شرح البداية كتاب السير (۵۳۷\۲) مكتبة فاروقية كوئته.

**ژباړه:** علامه برهان الدين (المرغيناني) په الهدايه کتاب کې ویلي دي: که دښمن د مسلمانانو په يو ښار باندي هجوم راوړي په ټولو انسانانو باندي يې دفاع لازم ده ، ښځه د مېړه له اجازې پرته او مريې د بادار له اجازې پرته جهاد ته وزي ځکه په همدې صورت کې چې (نفير عام دی) جهاد فرض عين دی، د فرض عيني عبادت په مقابل کې د ملک يمين او نکاح واکونه اغېز نلري، لکه په روژه او لمانځه باندي چې کوم اغېز نلري . الهدايه .

وفي بدائع الصنائع { فَأَمَّا إذَا عَمَّ النَّفِيرُ بِأَنْ هَجَمَ الْعَدُوُّ عَلَى بَلَدٍ، فَهُوَ فَرْضُ عَيْنٍ يُفْتَرَضُ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْ آحَادِ الْمُسْلِمِينَ مِمَّنْ هُوَ قَادِرٌ عَلَيْهِ؛ لِقَوْلِهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى {انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالا} [التوبة: ٤١] قِيلَ: نَزَلَتْ فِي النَّفِيرِ. وَقَوْلِهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى {مَا كَانَ لأَهْلِ الْمَدِينَةِ وَمَنْ حَوْلَهُمْ مِنَ الأَعْرَابِ أَنْ يَتَخَلَّفُوا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ وَلا يَرْغَبُوا بِأَنْفُسِهِمْ عَنْ نَفْسِهِ} [التوبة: ١٢٠] وَلِأَنَّ الْوُجُوبَ عَلَى الْكُلِّ قَبْلَ عُمُومِ النَّفِيرِ ثَابِتٌ؛ لِأَنَّ السُّقُوطَ عَنْ الْبَاقِينَ بِقِيَامِ الْبَعْضِ بِهِ، فَإِذَا عَمَّ النَّفِيرُ لَا يَتَحَقَّقُ الْقِيَامُ بِهِ إلَّا بِالْكُلِّ، فَبَقِيَ فَرْضًا عَلَى الْكُلِّ عَيْنًا بِمَنْزِلَةِ الصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ. بدائع الصنائع , كتاب السير, فصل بيان كيفية فرضية الجهاد (۹۸\۷) الناشر: دار الكتب العلمية – بيروت . هكذا في الفقه الإسلامي وادلته (۱۸ ۵۸۵۰).

**ژباړه:** علامه علاء الدين (الكاساني) په بدائع الصنائع کتاب کې ویلي دي: کله چې د نفير عام صورت پېدا شي چې دښمن (د مسلمانانو) په ښار باندي يرغل وکړي، نو جهاد فرض عين دی، د مسلمانانو په هر فرد باندي چې توان يې لري جهاد فرض عين ګرځي، دليل يې د الله سبحانه وتعالى دا قول دی (جهاد ته ووزئ پلي او سپاره) [التوبة:۴۱] ويل کېږي چې دغه آيت د نفير عام په رابطه نازل شوی دی، او بل دليل يې د الله سبحانه وتعالى دا قول

دی (مناسب نه دی د مدینې او دهغې د اطرافو او سېدونکوته (لکه مزینه، جهینه، اشجع، غفار او اسلم قومونه ) چې دوی له رسول الله څخه شاته په کورونوکې پاتې شي، د ځان لپاره راحت طلبه شي او رسول الله (د جهاد ) په مشقت کې وي ) [التوبة: ۴۱] اوپه دې دلیل چې تر نفیرعام مخکې هم د جهاد وجوب په ټولو باندې ثابت وو، مګر له پاتو خلکو څخه په دې سبب ساقط وو، چې د ځینو په وسیله کفایت کېده، کله چې د نفیر عام صورت متحقق شو، نو په ځینو کفایت نه کېږي عمومي پاڅون ته اړتیا پیدا شوه، نو جهاد په ټولو افرادو باندې فرض عین شو لکه لمونځ او روژه (د لمانځه او روژې په حق کې یو کس د بل په لمانځه او روژه نه خلاصېږي همدا شان د فرض عین جهاد په حق کې هم یو کس د بل په جهاد نه خلاصېږي ).

**د شریعت مخالفه افواه دکفارو د جګړې تکتیک دی :**

که کتونکي د شیطان اکبر ( ابلیس ) او مشهور فرعون واقعات د قصص الانبیاء او تفسیر شریف په کتابونوکې وګوري په یقیني ډول به ورته معلومه شي چې هغوی په فرېب ګري سره د ساده لوحو ذهنیتونه په ډېره چټکتیا او اسانۍ سره یوه او بل طرف ته اړولی او را اړولی دي، په دې کارکې یې پوره قابلیت او مهارت درلود ، معاصر فرعون او مکار دښمن هم ترې کم نه دی، په دې اوسنیو وختوکې کافرانو په ډېر ځوګ او شور سره افواه خپره کړې ده چې د اسلامي امارت د مجاهدینو د جهاد تر شا نور هیوادونه ولاړ دي، هغوی دي چې دا جګړه پرمخ بیا یې او دا جهاد د هغوی د غرایض لپاره دی، د دې لپاره چې دا خبره په بد رنګ تعبیر او تعریف شي بې دریغه تبلیغات یې ورته وکړل او همدا راز دکابل ضمیر فروشه اداري هم د رسنیو په وسیله کمپاینونه ورته وچلول، له دې شیطاني افواهاتو او تبلیغاتو څخه د مکار دښمن مطلب دا دی چې د ساده لوحو په اذهانوکې اسلامي امارت د سپېڅلي جهاد په ساحه کې له وطن سره په خیانت تورن کړي، له بل پلوه دښمن غواړي چې د مجاهدینو تر منځ اتحاد او یو والي ته ضرر ورسوي، نو مجاهدین به ضعیف شي او دوی به پرې لاس بري شي، په حقیقت کې دغه

شیطاني افواهات او تبلیغات د مکار دښمن توطیې او دسیسې او د جګړې د اړخ یو تکتیک دی، دغه ناولي افواهات د شریعت له نظره مردود او باطل دي، ځکه تاسو په تېرو مضامینو کې قرآني آیتونه او نبوي حدیثونه او د فقهاوو تصریحات مطالعه کړل چې دا جهاد شریعت مطهره په حکم او د شرعي اړتیا وو له مخې پیل شوی، مسلمانان مجبور دي چې دا جهاد پرمخ بوځي ځکه د الله تعالی حکم دی او مجاهدین ځانونه د الله تعالی د حکم تابع ګڼي، نو په هیڅ صورت دا جهاد د بل کوم لوري په شوم غرض نه ده بنا او نه هم د دنوی مردودو اهدافو لپاره ځوک دومره مشقت او تکلیف تیروي.

**د کافرانو په خلاف د جهاد فتوی د صدور په مهال :**

د متجاوزو کافرانو د یرغل په خلاف چې د افغانستان متدینو عالمانو د سپېڅلي جهاد د لزوم او وجوب فتوی صادره کړه، هغه مهال نه د امریکا لومړی لاسپوڅي حامد (کرزئ ) وو اونه یې د حکومت په نوم کومه اداره موجوده وه، همداراز نه او سنی غلام اشرف غني وو اونه یې کومه اداره درلوده، پوره (۱۷ ) کلونه د متجاوزو کافرانو د ظلم او وحشت په خلاف متدینو مسلمانانو برحق جهاد جاري ساتلی، په اتلسم کال کې هم د مقدس جهاد جریان د همغه حکم او هغې فتوی تسلسل دی، ځکه د مسلمانانو په ذمه د جهاد د فرضیت عوامل، اسباب او شرطونه لکه څه راز چې (۱۷ ) کلونه مخکې موجود وو، همغه شان اوس هم موجود دي، کافران همغه شان د هیواد په حریم قابض دي، د افغانستان د ځمکې او فضا په قلمرو مسلط دي، د هیواد ټولنیز حاکمیت اوس هم د کافرانو په غاصبانه قبضه کې دی او د مسلمانانو دیني او ملي حقوق یې پایمال کړي دي، په مسلمانانو باندي بې انتها ظلمونه دوام لري، د مسلمانانو په کورونو، مدرسو، مساجدو او عامه تجمعاتو باندي بمبارونه همداراز د سپین ږیرو، کوچنیانو، ښځو او ناروغانو بې دریغه قتل عامونه همغه شان جریان لري، د کافرانو له اعتراف سره سم (۳۰۰۰۰ ) دېرش زره کسان د مسلمانانو بچې د دوی په زندانونو کې ترشکنجو لاندي شپې صبا کوي.

د کافرانو په خلاف د مقدس جهاد د لزوم او وجوب ټول عوامل لکه د په خوا په شان اوس هم همغه شان موجود دي، داسي نوی کوم عامل نه دی پیدا شوی چې د جهاد د سپېڅلي حکم د سقوط سبب وګرځي .

**د غلامانو تا لاري فتوی بطلان :**

(۱۴\جوزا ۱۳۹۷\ هش ) په کابل ښار کې د لو یي جرګې په تا لارکې فتوی صادره شوه چې دکافرانو په خلاف فرض عین مقدس جهاد په کې حرام او ناروا جګړه بلل شوی ده، په حقیقت کې دا فتوی دکافرانو په غوښتنه د هغوی مستخدمینو صادره کړې ده، او د اسلام مقدس احکام په کې تحریف شوې دي، د دې فتوی بطلان ته د متدینو مسلمانانو پام را ګرځووم.

د معاصر فرعون اجیرو څیرو د مفتیانو په نوم الله جل جلاله ته شا کړه اوکافرانوته یې مخ کړ، دغو ظالمانو د فتاوی په نوم داسې مقاله خپره کړه په ښکاره په کې د الله تعالی له حکم څخه بغاوت او انکار شوی دی. دوی د کافرانو د ظلم، تجاوز، د دار الاسلام په حریم باندي د کافرانو د تېري په خلاف فرض عین جهاد د مسلمانانو په خلاف جنګ تعبیر کړ، د حراموالي حکم یې پرې وکړ او داسي یې ولیکل:

په افغانستان کې روانه جګړه ناجائزه او هیڅ ډول شرعي صبغه نلري : روانه جګړه او د هغې مختلف ډولونه د شریعت او دیني نصوصو له نظره ناروا ده او د مسلمانانو د وینې تویدنې پرته بل هیڅ نتیجه نه ورکوي . د تا لاري فتوی ص (۱۵)

دغو څیرو په دې انحراف سره هڅه وکړه چې سا ده لوحه مسلمانان تېر باسي او کافرانوته یې سر په سجده کړي، د ذلت او غلامۍ طوقونه چې د دوی په غاړه دي هغه د نورو غاړې ته هم ورواچوي لکه دوی چې امریکایانوته د افغانستان د خاوري قباله ورکړه، او د افغانانو وینه بهول یې د کافرانو حق وباله او د مصئونیت تړون یې ور سره امضاء کړی، د مصئونیت د تړون معنی داده چې کافران به د افغانستان په خاوره کې محفوظ وي هیڅ راز ضرر به نه ورته متوجه کېږي او کافرانو که هرڅه کول هغه د دوی حق دی، خلک یې وژل، زندانوته یې اچول، مالونه او سرمایې یې ترې غصبولې، د افغانستان

معدنيات يې وړل دا هرڅه د امريکايانو حق بلل شوی دی، د معاصر شيطان اجير مفتيان په کومه خوله او سترګو د کافرانو خلاف جهاد د مسلمانانو تر منځ جګړه بولي؟ د کابل اداره او د دوی مربوط اشخاص خو د کافرانو په صف کې مسلح شوي نوکران دي، دوی کله استقلال لري، دوی اوکافران يو متحد ټولی دی.

## کقائق په عنواناتو نه بدلېږي :

دا چې کافرانو په افغانستان کې د حامد (کرزي) يا د اشرف غني ترمشری لاندي د حکومت په نوم اداره اعلان کړې ده، په حقيقت کې دکافرانو د حکم د ابلاغ او تنفيذ ماموريتونه دي، حقائق په عنواناتو او نومونو نه بدلېږي، صرف د ساده لوحو د تېر ايستلو او غولولو لپاره کافرانو خپل غلامان رامخې ته کړي ، اشغال او غصب ته يې پوښ پرې ورکړی، په واقعيت کې ټولې پرېکړې او فيصلې اوس هم کافران کوي، د افغانستان خارجه او داخله پاليسۍ کافران جوړ وي، د هيواد په کچه د نظامي او ملکي چارو پرېکړې او فيصلې دکافرانو په اختيارکې دي، دکرزي او اشرف غني ټول اورګانونه دکافرانو په چوپړکې دي، د دوی او د امريکايانو د نورو متحدينو چې د ناټو په چوکاټ کې دي هيڅ توپير نشته، که دوی وايي چې موږ کلمه وايو، د ناټو په چوکاټ کې ترکان او نور عربان هم راغلي دي هغه هم کلمه وايي، صرف د کلمې په ويلو سره خو د کابل اداره او اجير مفتيان دکافرانو له ترکيب او اتحاد څخه نشي وتلای، دوی سره متحد دی ، په دنيا کې يو د بل په ملګرتيا دنيوي ګټې او منافع ترلاسه کوي، دلته به دوی او کافران يوځای وژل کېږي او په آخرت کې به ان شاء الله دوی اوکافران يوځای جهنم ته ځي.

قال الله تعالي { اِنَّكُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْكٰفِرِيْنَ فِيْ جَهَنَّمَ جَمِيْعًا ۙ } [النسآء: ۱۴۰].

**ترجمه** : (که ستاسو په حضورکې د دين توهين کېده او تاسو بيا هم خاموشي اختيارکړه ) نو هغه مهال تاسو هم د کافرانو په شان ياست، باور ولرئ الله کافران او منا فقان دواړه په جهنم کې سره يوځای کوي .

**مسلم او منل شوی حقیقت :**

دا یو منل شوی عرف او حقیقت دی ، هغه څوک چې تنخوا ورکوي مالک ګڼل کېږي، هغه څوک چې تنخوا اخلي مزدور ګڼل کېږي، (کسیکه نان دهد فرمان دهد ) د اشرف غني د اداري ټول ارګانونه په کابل کې د تا لار د مفتیانو په شمول د کافرانو له خوا روزل کېږي، تربیه کېږي، لوجستیکي اکمالات کافران ورکوي، جنګ دکافرانو په امرکوي، مفتیان یې فتوا وي د کافرانو په لارښوونه ورکوي، د جګړې او فتوی ګټه یې کافرانو ته رسېږي، ټول فوځي وسائل او تجهیزات کافران ورکوي، خدمت کافرانو ته کوي، د کافر ټوپک یې په اوږه را اخیستی دی، مرمۍ دکافرانو وراچوي، پرې وژني او په ښه کوي مسلمانان، د جبب خرڅه کافران ورکوي، ماهانه معاش کافران ورکوي، د عیال روزي او نفقه کافران ورکوي، دکافرانو په ټانک سپاره دی، تېل کافران ورکوي، دریشي یې کافران ورکوي، اوبه او خواړه یې دکافرانو له اوخوره دي، په ټولو کاروکې یې یو کار هم د مسلمانانو په ګټه نه دی، ټول پروګرامونه یې دکافرانو له خوا ترتیبېږي، دوی یې یوازې د اجراآتو او تطبیق وسائل او ماشینان دی، په خوا دکرزي او اوس د اشرف غني په اداره کې توظیف شوی ډله که د معاصر فرعون اجیران او مزدوران نه دي نو څه دي؟ په کوم منطق، په کوم دلیل د غني اداره د خپلواکې او استقلال ادعا کوي، دټولو ارګانو کړه وړه یې د کافرانو تر مشورو پوري موقوف وي، ټول اعمال یې د کافرانو په هدایت او لارښوونه تر سره کېږي، د پیغور، ذلت او غلامۍ طوق لعنت یې په غاړو ځوړند دی، دوی لا د خپلواکي نغارې غږوي. په حقیقت کې د مزدوري اداري اجیر مفتیان ټولې منډې تړې د خپل ژوند د بقا لپاره کوي، د الهي حکم جهاد توهین یې کړی دی، فرض جهاد یې تروریستي عمل بللی دی، استشهادته یې انتحار ویلی دی، مجاهد یې د تروریست په نوم تعبیر کړی دی، مجاهد یې د مجرم په توګه زنداني کړی، شکنجه کړی، او اعدام کړی دی، په خپلو اقوالو او اعمالو یې دکافرانو ملاتړ کړی دی، د کافرانو ملګرتیاته یې دعوت چلولی دی، په اخیرکې یې ګمراه

کوونکې فتوی کافرانو ته د ښه نیت، اخلاص او صدق په ښوولو سره صادره کړه، چې په دې وسیله د کافرانو مرستې جلب کړي.

**د دوی په فتوا څو خبرې:**

**لومړی** –: دوی د فتوی په خطبه کې د سورت الحجرات (۱۰۹) آیت ذکر کړی دی، د آیت مبارک محور د دوو مسلمانو ډلو د خپل منځي جګړې په حرمت را څرخي چې نورو مؤمنانو په کې امر شوی دی، چې د دوی ترمنځ سوله وکړئ.

قال الله تعالی {وَإِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا} . الأية [الحجرات : ۱۰۹].

**ترجمه**: که د مؤمنانو دوې ډلې یو د بل سره په جنګ وي تاسو یې ترمنځ سوله وکړئ.

د کافرانو مستخدمینو د مقدمې تر عنوان لاندې د خپلې فتوی په (۳) صفحه کې لیکلي دي:

( موږ علماء په افغانستان کې روانه جګړه ناروا عمل ګڼو او تېنګار کوو چې دغه جګړه هیڅ راز دیني او شرعي صبغه نه لري.) تا لاري فتوی ص (۳).

موږ مخکې دا خبره ذکر کړه چې په (۲۰۰۱م) کال کې امریکایان او دهغوی متحدین چې د افغانستان په حریم را وختل او هیواد یې کاملا تر خپلې ظالمانه او ناروا قبضې لاندې اشغال کړی، مجاهدینو د سترو عالمانو په اجماع د متجاوزو کافرانو په خلاف مقدس جهاد پیل کړی چې تر اوسه لا جاري دی، نه کافران له هیواده وتلي دي او نه یې ظلم وحشت ته د پای ټکی اېښی دی، او نه یې د مسلمانانو په حقوقو غاصبانه قبضه پای ته رسېولې ده، اوس هم دهغه جهاد تسلسل دی، د کافرانو مستخدمینو الحجرات (۱۰۹) آیت د مغالطې په ډول په دې غرض ذکر کړی، چې دا د مسلمانانو ترمنځ جګړه وښیي، تعجب دی، آیا دوی د مجاهدینو مقابل جانب کافرانو ته مسلمانان ویلي دي؟ او که یې کافران د افغانستان د وطن مالکان ګڼلي دي؟ دوی د کافرانو په دومره بې ساري تجاوز، بې انتها ظلم، غصب او اشغال باندي

سترګي پټي کړې دي؟ اوکه يې دا هرڅه دکافرانو حق ګڼلی دی؟ حقيقت دا دی چې دکافرانو ډالرو ړانده، کاڼه او ګونګيان کړي دي، د هغوی د خوشالولو او د عامو افغانانو د تېر ايستلو په غرض يې د اسلام د مقدس دين عظيم حکم چې د خدای د لارې سپېڅلی جهاد دی ناروا عمل بللی دی، د دوی اوږې خو دکافرانو په احساناتو درنې دي ، په دې سبب چې کافران د دوی روزي رسان او محسنين دي، همدا لامل دی چې د هغوی ظلم او تجاوز ته يې ناروا عمل نشوای ويلای، نو ځکه ورته اسانه شوه چې د لوی خدای د سپېڅلي کتاب قرآن د حکم په تحريف يې لاس پوري کړ. **اعاذنا الله وجميع المسلمين من ذالک .**

**دويم :** د کافرانو مستخدمينو د خپلي فتوی په درېيمه صفحه کې ( د افغانستان لنډ تعريف او پېژندنه ) ترعنوان لاندي د افغانستان تېر تاريخ ته کتنه کړې ده، د مخکنيو متدينو، خدای پالونکو غازيانو د ديني خدمتونو او شاهکاريو يې په دې توګه يادونه کړې دي:

( افغانستان ته په ۳۲ هجري کال يعنې د حضرت عثمان ذي النورين رضي الله تعالی عنه په وخت کې اسلام رارسيدلی دی. دغه هېواد بيا تر اوسه په دغه دين نه يوازې ولاړ او ثابت پاتې شوی بلکې په دې لاره کې يې ډيرې سترې کارنامې او قرباني ورکړې. د اسلام په خپرولو او د اسلامي علمي مرکزونو په جوړښت کې يې رغنده رول ادا کړی. اسلامي امت ته يې د تفسير، احاديثو، فقه، تصوف او نورو علمي برخو کې بې شميره ځلانده ستوري وړاندې کړي دي، نه يوازې ولس او خلکو آن تر دې چې د دغه خاورې حاکمانو د اسلام په خپرولو کې ډيرلوی ګامونه اوچت کړي دي. د غزنويانو، غوريانو، سوريانو، هوتکيانو او ابداليانو دورونه د دې هيواد د تاريخ هغه زرين دورونه دي چې الله سبحانه و تعالی د دوی په وسيله په اسيا کې اسلام خپور او مليونونو انسانانو ته يې د وحدانيت پيغام رسولی دی ).

د کافرانو مستخدمينو د پورته بيان په ذکر کولو سره هڅه کړې ده چې دوی ځانونه د هغوی وارثين وښيي، او د هغو د اعمالو او کارنامو په يادولو سره خپل اسلاميت او دين ته وفا داري ثابته کړي، خو په حقيقت کې د هغو

اسلافو يادونه ددوى شرمېدلو لپاره ستر پيغور دى ځکه هغوى د مقدس دين خدمت په ښه اخلاص او په پوره مېړانه کړى دى او دوى اجيرانو خو د هغوى ټول خدمتونه په اوبو لاهو کړل د هغوى له خدمتونو او ارمانونو سره يې جفا او ستر خيانت کړى دى، دوى په خپل عمل د اسلافو د دښمنانو ملاتړ کړى دى، په دې رابطه الله جل جلاله په قرآن کريم کې داسي فرمايي:

قال الله تعالى { تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۖ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ ۖ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ} [البقرة: ۱۳۴].

**ترجمه** : دغه (تير) امت تېر شوى دى (آخرت ته تللي دي ) دوى چې کوم عمل کړى دى، هغه له هغوى سره دى، ستاسو عمل له تاسو سره دى، له تاسو څخه د هغوى د اعمالو پوښتنه نه کېږي.

يعني هرچا ته د خپل عمل بدل ورکول کېږي، که تاسو د بدو اعمالو څښتنان ياست نو د هغوى اعمال تاسو ته کومه ګټه نه رسوي، تاسو خپل عمل صالح کړئ.

د امريکا مستخدمينو يوازي دا نه چې دکافرانو د ظلم او يرغل په وړاندي ونه درېدل بلکي سرچپه يې دکافرانو استحکام ته کمپاينونه وچلول، د هغوى په ګټه يې نه ستړي کېدونکي تبليغات وکړل، اوس دا دى تر ټولو ستر جرم ته يې بدې وهلي دي چې د لوى شيطان د خوشالولو په غرض يې د فتوى تر عنوان لاندي دکافرانو په خلاف فرض عين مقدس جهاد حرام بللى دى، په دې سره اجيرانو الهى حکم تحريف کړى دى، دې ظالمانو لوى ظلم کړى دى الله تعالى دې سزا ورکړي. اعاذنا الله وجميع المسلمين من ذا لک.

دريېم: تطميع شوو مستخدمينو د خپلي فتوى له (۴ بياتر ۲ ) صفحي پوري د هغه اساسي قانون په رابطه غږېدلي دي چې په داسي وخت کې جوړ شوى چې دکافرانو له خوا هيواد اشغال او د افغانستان په ځمکه او فضا کاملا مسلط وو او لا هم دي، د کافرانو په ابتکار او د هغوى تر بشپړ نظارت لاندي جوړ شوى، تصويب شوى اساسي قانون دى، مستخدمين په دې غرض پرې غږېدلي دي چې خپله مسلماني، خپلواکي او اسلام ته د وفادارۍ پرې ثابته کړي، په دې سبب يې د (۱۳۸۲هش) کال د اساسي قانون په (۱۲۲) مادو کې

تفتیش کړی دی یو شمېر هغه مواد یې ترې را چاڼ کړې دي چې ظاهرا د اسلامي عنوانات په کې نغښتل شوي دي.
دا اجیرې څیرې په دې نه دي پوهېدلي چې په اساسي قانون کې په شعوري ډول د اسلام اصل اساس په ډېر مهارت ببخي له منځه وړل شوی دی او د دې په عوض کې په ډېره پېچلې او مرموزه توګه کفري اهدافو، معتقداتو او عنعناتو ته دروازې پرانستل شوې دي، چې کافران وکولای شي د اساسي قانون له لارې د افغانستان په مؤمن او دین پالونکي ولس باندي دکافرانو هغه اهداف چې د هغو لپاره یې پرېمانه سرمایه ګذاري وکړه او پوره (۱۷) کلونه یې مسلمانان تر مسلسل بمبار لاندي نیولي دي او د بارودو په اورکې یې وسوځول، د دې خبري تشریح چې اساسي قانون کې د اسلام جرړه له ببخه ایستل شوې ده او کفري اهدافو ته دروازه پرانستل شوې ده، استخدام شوو مفتیانو د خپل فتوی په تصویب کې داسي لیکلي دي:
د فتوی له متن څخه ( په تیره بیا د ۱۳۸۲ کال اساسي قانون چې په پوره ډول په اسلامي اصولو او معیارونو ولاړ دی او د اسلام سره په ټکر کې هیڅ قانون ته د جواز حق نه ورکوي ، چې د دې
خاورې د خلکو او حکومت اسلامي څیره په ډیره واضحه توګه بیانوي.)
د دغه قانون دریمه ماده داسې وایي: په افغانستان کې هیڅ قانون نشي کولای چې د اسلام د
سپیڅلي دین د معتقداتو او احکامو مخالف وي ). تالاري فتوی صـ (۴).
د افغانستان اسلامي جهموریت... اساسي قانون یې د سیمې په کچه ترټولو ډیر اسلامی قانون دی پر وړ اندې یې وسله واله مبارزه او د جهاد تر نامه لاندې کړنې هیڅ رازشرعي جوازنه لري؛ د دیني نصوصو په اساس د جهاد حکم یوازې د اسلامي دولت (مسلمان حاکم) صلاحیت دی. د تا لاري فتوی صـ(۲۴)
د اساسي قانون پورته یادې شوي جملې په ډیر مهارت سره د دې لپاره ځای کړل شوي دي، چې خلک تیر باسي، کنه بیرته په همدې اساسي قانون کې موږ ګڼ نور موارد پیداکوو چې له اسلامي احکامو او معتقداتو سره ښکاره تضاد لري، مثلاً ځینو نړیوالو قوانینو ته بې له کومې استثنا څخه افغانستان په

داسې حال کې ژمن بلل چې هغه نړیوال قوانین د اسلامي احکامو سره ښکاره عقیدوي او عملي تضادونه لري، د شریعت جزایي احکام تطبیقولو په برخه کې د بشر د حققو په نامه کنونسیونونه په شرعي احکامو باندې معاندانه انتقاد لري، د الله تعالی په کتاب کې راغلي د حدودو قوانین غیر بشري او ظالمانه بولي، خو په اصطلاح د افغانستان قانون هغه خبره ورسره مني او بیا وایي چې دلته به هیڅ قانون د شریعت د احکامو او معتقداتو خلاف نه وي.

د پورته بیان په اخیري کرښه کې د کابل نابغه وو یوه بله عجیبه جمله هم ذکرکړې ده، دوی مطلق ویلي دي: (چې د دیني نصوصو په اساس د جهاد حکم یوازي د اسلامي دولت (مسلمان حاکم ) صلاحیت دی ) داسي مطلق حکم په دیني امورو کې د دوی قصدي او عمدي صریح انحراف په ګوته کوي، ځکه د دغه حکم محل هغه صورت دی چې مسلمانان په کوم کفري هیواد باندې تعرض کوي، زموږ په موضوع کې خبره سر چپه ده، کافرانو زموږ د هیواد په حریم تجاوز کړی دی، په حاضر حالت کې د کافرانو په خلاف جهاد فرض عین ګرځېدلی، کافرانو پر مسلمانانو تعرض کړی دی دا دنفیرعام صورت دی، د نفیر عام په صورت کې د جهاد فرضیت نه دکوم سلطان په وجود او نه یې په اذن او حکم پوري موقوف دی، د کابل د اجیر مفتیانو دغه مطلق حکم سراسر بې مورده دی، د دوی له دغه صریح انحراف څخه معلومه شوه چې ټوله فتوی یې له انحرافاتو، فرمایشي او بې مورده احکامو ډکه ده.

د معاصر شیطان مستخدمینو په پورتنیو جملو کې د اساسي قانون یادونه په دومره ویاړ کړي، ته به وایې چې دا کوم الهي فرمان دی، د کابل اجیرانو یې اجراء او تطبیق ته دومره ژمنتیا ښوولې ده چې آن په عامه مجالسو، مرکو، تبصرو، او غونډوکې یې اطاعت په ځان داسي واجب ګڼي چې ته به وایې دا اسماني وحی ده.

له دې سره سره چې د اساسي قانون ډېری مواد د مسلماني ټولني لپاره کفري مهلک جراثیم دي، چې په تطبیق سره یې په مادي او معنوي ډول د مسلمانانو عامه حقوق پایمالېږي، او په دنیوي او اخروي لحاظ یې د هلاکت او تباهۍ سبب ګرځي، د بېلګي په توګه به یې یوه برخه دکتونکو د

مطالعې او قضاوت مخې ته کېږدو :
دوی د ساده لوحو د غولولو او تېر ایستلو په غرض د اساسي قانون درېیمه ماده داسي لیکلې ده:
(درېیمه ماده: په افغانستان کې هیڅ قانون نشي کولای چې د اسلام د سپېڅلي دین د معتقداتو او احکامو مخالف وي ). تالاری فتوی او اساسي قانون.
په حقیقت کې د اساسي قانون ذکر شوې درېیمه ماده د بلي اساسي مادې تکمیل دی، جنایتکارانو په خپل اساسي قانون کې هغه ماده قصدا او شعورا متروکه او تحریف کړی، د هغې اکمالوونکې ماده یې تصویب کړې ده، دې ته په کتو سره چې د افغانستان اتباع ټول مسلمانان دي، د تصویب اصلي څېره او صورت باید داسي شوی وای :
درېیمه ماده: ( په افغانستان کې به د خدای جل جلاله حکم برلاس او نافذ وي ).
له دې وروسته د څلورمې مادې په ترتیب کې یې اکمالوونکې ماده داسي تصویبېږي:
څلورمه ماده: په افغانستان کې هیڅ قانون نشي کولای چې د اسلام د سپېڅلي دین د معتقداتو او احکامو مخالف وي.
د شرعي سیاست په معاصره اصطلاح کې که څه هم دولت له څو ارکانو ترکیب وي، خو په حقیقت کې دولت اجتماعي حاکمیت دی، اجتماعي حاکمیت عبارت دی د اساسي قانون له تطبیق څخه، ځکه حاکمه قوه د اساسي قانون حکم چلوي، نو اصل اطاعت د اساسي قانون کېږي، ټولنیز حاکمیت په اساسي قانون پوري محصور دی، د سترو عالمانو له قول سره سم د دولت (چې اطاعت یې کېږي ) د اسلامي کېدلو لومړی اساس دا دی چې د حق او باطل ترمنځ امتیاز کوونکی او فیصله کونکی به د الله جل جلاله حکم وي، که د اساسي قانون محور دا ماده وه: ( د خدای جل جلاله حکم برلاس او نافذ دی ) نو هغه حکومت ته اسلامي ویل کېږي، اوکه د حق او باطل ترمنځ

امتیاز کوونکی د مخلوقاتو رایي او عقلونه وو، نو هغه حکومت غیر اسلامي دی، مکار دښمن د دیني او ملي غدارانو په وسیله په اساسي قانون کې دا ماده: ( د خدای جل جلاله حکم به برلاس او نافذ وي ) په شعوري توګه قصدا پریښې، په دې عمل سره یې د اسلام مقدس دین اساس او محور چورلټ او له بېخه ایستلې دی.

په دې رابطه الله جل جلاله فرمایلي دي:

قال الله تعالی: {اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ} [الانعام: ۵۷] [الحکم في تمییز الحق من الباطل] النکت والعیون للماوردي.

**ژباړه:** (د حق او باطل ترمنځ د تمیز د حکم او ) فیصلې ټول واک خاص د الله دی.

مکار دښمن او د معاصر طاغوت پیروانو چې د اساسي قانون له متن څخه په شعوري توګه قصدا او عمدا د اسلام اساس له منځه وړی دی، په دې انحراف سره یې د ټولنیز حاکمیت زړه ته د اسلام مقدس دین ورودي (د ننوتو ) دروازه بالکل په وسپنیز دېوال تړلې ده، او په شعوري توګه یې په عوض کې په ټولنیز حاکمیت باندي کافرانو ته د تسلط او د اجتماعي حاکمیت د غصبولو دروازه د اساسي قانون په شپږمه ماده کې خلاصه کړې ده، چې له دې لارې د اجتماعي حاکمیت زړه ته کفري اهداف، معتقدات او عنعنات ننوزي، چې د مسلمانانو افغانانو پاکه ټولنه په بې شمېره فساداتو باندي اخته کړي.

د مکار دښمن د اسلام له مقدس دین سره عداوت او دښمني تردې هم زیاته ده، چې د اسلام د سپېڅلې دین د محوه کولو او بېخي له منځه وړلو په غرض یې په اساسي قانون کې تردې هم زیات ګمراه کوونکي د ارتداد او انحراف ګامونه اخیستي دي.

هغوی د اساسي قانون په شپږمه ماده کې ذکر کړي دي:

شپږمه ماده : دولت ... د ډیموکراسۍ په تحقق ... مکلف دی ). اساسی قانون.

دا په داسې حال کې ده چې د همدې اساسي قانون په دریمه ماده کې یې وعده کړې وه چې هیڅ قانون به د اسلامي د مقدس دین له معتقداتو او احکامو سره مخالف نه جوړیږي.

ديني او ملي خائنانو د کفري ډيموکراسۍ تحقق او تطبيق ته د اساسي قانون په چوکاټ کې په ټوليز
کيفيت ژمنتيا ښوولې ده، له دې سره سره چې د غرب په ابتکار جوړه شوې ډيموکراسي يو ساده بې معنی او بې مفهومه لفظ نه دی، بلکې مستقله کفري مفکوره او تيوري ده، ځان ته تعريف، ثغور او حدود لري، چې هم دين او هم عقيده ده او د شرک، عيسويت او يهوديت له اديانو څخه ترکيب شوې مشترکه برنامه لري، د دې لپاره يې وضع شوې ده چې په نړيواله کچه خلک د الله تعالی له احکامو منلو څخه را منحرف او پرځای يې دغه ديموکراسۍ تطبيق کړي.
د ډيموکراسۍ امور د ديني عالمانو په اجماع کاملا د اسلام د مقدس دين له مقتضياتو څخه جلا (بېل) دي، ډيموکراسۍ پرته له کوم تاويله او قرينې صافه سوتره له کفري احکامو، معتقداتو او عنعناتو څخه جوړه منحوسه پروسه ده چې مخامخ د سيکولرزم استازيتوب کوي، په مجموع کې کافران نه د يهوديت او نه د عيسويت دين ته دومره عقيده لري لکه څومره عقيده چې ډيموکراسۍ ته لري، کتونکي دي په نړيواله کچه وګوري چې کافرانو د عيسويت او يهوديت دينونو د ترويج او تطبيق لپاره دومره سرمايه ګذاري نه دی کړې، لکه څومره چې يې د ډيموکراسۍ د ترويج او تطبيق لپاره کړې ده، تاسو يې وينئ چې غربي کافران په افغانستان کې (۱۷) کلونه د ډيموکراسۍ او سيکولرزم د تطبيق لپاره وجنګېدل، بې دريغه ډالر، ټانکونه، طيارې، وسائل، اسباب يې مصرف کړل، لوړ رتبه فوځي جنرالانو او بې شمېره عسکرو يې د ډيموکراسۍ او سيکولرزم د ترويج په ارمان سرونه وخوړل، د کافرانو د راتګ هدف د ډيموکراسي ترويج ده، او په دومره لوړه کچه مصارف او سرمايه ګذاري يې د همدې لپاره کړې ده، د کابل ګوډاګيانو آن د اساسي قانون په شپږمه ماده کې د ډيموکراسۍ تحقق او تطبيق ته ژمنتيا ښوولې ده، کافران د همدغه هدف د ترلاسه کولو په غرض په کمين کې وو چې ډيموکراسۍ د اساسي قانون په ضمن کې ومنل شي او هغسې وشول.

د دغـه قـانون پـه ۱۴۹مـاده کـې داسـې راغلـي: " اسلامي جمهوري نظـام نـه تعديليږي. د تا لاري فتوی صـ (۲).

د کابـل خرڅو شـوو مفتيـانو د اساسـي قـانون دا ډول مـادې پـه ډېـر افتخـار پـه خپلـه فتـوی کـې ځـای پـه ځـای کـړې دي، لـه دې سـره سـره چـې د ډيموکراسـۍ سياسي ځانګـه جمهوريـت دی چـې د سـيکولرزم د پيـاده کيـدو تـر ټولـو ښـه وسيله او سبب ده،داسې نظـام د اسـلام لـه اصولو څخـه کـاملا منحـرف او پـه دين نه ولاړ حکومت دی، نو کوم نظـام چـې لـه اصـله د ديـن احکامو تـه پـه کـې ځای نه ورکول کېږي، يا په اوږده زمانه کې د ديـن د احکـامو د تحريـف او تغيـر مجـال پـه کـې سـل پـه سـلو کـې موجود وي، نو بيـا دوی پـه کـوم دليـل پـه دې منحوس نظام افتخارکوي آن چې د عدم تعديل ماده يې د قرآن کريم له محکم آيت سره تشبيه کړې ده.

د کابل اساسي قانون هغه قانون دی چې د اسلام د دين په ځای د ډيموکراسۍ او سيکولرزم د تحقق تابيا لري او د اسلام په کامل دين باندي د بې کفـايتي عيب لګوي او په تدريجي ډول د مقدس دين د اصيلي څېرې د مسـخه کېـدو اراده يې تر شا پرته ده، کمونيزم له دا ډول منافق نظام څخه لرښـه والی درلـود، ځکه د کمونيزم د ښکاره دريځ نيونې پـه اسـاس مسـلمانان د هغـوی پـه کفـر او الحاد باندې په آسانۍ سره پوهيدای شو ای او ډير يـې ځـوک نـه ښـکار کيـدل، ولـی سـيکولرزم چـې د ديموکراسـۍ او آزادۍ پـه غـوړ پـوښ کـې مـوږ تـه مختـه مخته کيږي، له کمونيزم څخه څو برابره اسلامي ټولنې تـه خطرنـاک دی، ځکـه د وخت په تيريدو سره بـه د همـدې ديموکراسۍ لـه مخـې افغانـان الحـاد تـه مخـه کـوي، لکـه چـې اوس يـې هـم پـه ځـوان کهـول کـې پريمانـه علائـم ليـدلی شـو، نالوستی او بې علمه خلک يې په آسانۍ سره قربـاني کيـږي، تعليمـي اداري يـې وسيلې ګرځي او يو لوی ځوان قشر په غربي مفکوره سمبالوي، چې د دې خبـرو ښکاره مثالونه او درځونونه نمونې په ښاريا تو کې همدا اوس ليدلی شو، نو بيـا د کابل د تالار د مفتيانو ولی سترګې ړندې دي، والله بالله، که ديموکراسۍ او سيکولرزم خپل وروستي آرمان ته ورسيږي، که دغه ملايانو ته چې اوس پـه ابـا

اوقبا کې یو خوا بلخوا ځغلول کیږي، که څوک د یو توت په اندازه هم اهمیت ورکړي، د دا ډول اساسي قانون په منلو سره د افغان ولس دوه مسلم اجتماعي حقوق پایمالیږي او بېخي له منځه ځي:

(۱): د اسلام مقدس دین تحفظ، د هر مسلمان افغان مسلم اجتماعي حق دی، خو د کابل اداري په امریکایي ډوله اساسي قانون کې د ډیموکراسۍ په منلو سره د مقدس دین د تحفظ حق له منځه ځي.

دا صرف ادعاوې نه دي، موږ په تیرو ۱۷ تر اشغال لاندې کلونو کې ارتدادونه ولیدل، موږ د ښځو د حقوقو په نامه له اسلام څخه ښکاره بغاوتونه تجربه کړل، موږ د رسنیو لخوا په اسلامي احکامو باندې ملنډې تر سترګو تیرې شوې، موږ د فحاشا، نڅا، شرابو او کبابو عام ترویج چې زموږ اسلامي ټولنه د یوه ویروس په ډول په اخلاقي لحاظ ځپي لمس کوو، دا ټول د همدې مزخرف قانون او دیموکراسۍ ارمغانونه دي، بې له شکه چې د ډیموکراسۍ په منلو سره د اسلام مقدس دین محوه او ملغا کیږي په ټولو دولتي او نا دولتي چاروکې به د مقدس دین په ځای د ډیموکراسۍ فرامین تطبیق کیږي، د دیني احکامو ځای به د ډیموکراسي احکام اشغالوي، په داسې کړنه سره د مسلمان ولس دنیا او آخرت دواړه بربادیږي.

(۲): د نسل او نسب تحفظ د هر مسلمان افغان مسلم حق دی، د منحوسې ډیموکراسۍ په منلو، تطبیق او ترویج سره، د مسلمان د نسب او نسل د سالمیت اجتماعي حق له منځه ځي.

دلیل یې دادی چې د اسلام په مقدس شریعت کې سالم او محفوظ نسب لوړ اعتبار لري، په محفوظ نسب باندې انسان معروف النسب شمېرل کیږي، د وراثت، حضانت، عاقلیت او داسې نور مهم اجتماعي حقوق او مسائل په معروف او محفوظ نسب پوري تړلي دي، د نسب د مجهولیت په صورت کې ټولنه له دې ټولو لوړو حقوقو څخه بې برخې کیږي، د ډیموکراسۍ په ترویج کې د نارینه او ښځینه بې مهاره اختلاط، نا مشروعه اړیکي را منځ ته کوي، چې د نسل او نسب د ګډ وډې سبب ګرځي، په راتلونکي نسل کې به هیڅ

ځوک د سپېڅلي او سالم نسب ځښتن پاتي نشي ، په دې برخه کې دې څوک دلائل نه وايي، ځکه ټوله غربي نړۍ یې شاهده ده، ټول هغه په نوم اسلامي ملکونه یې شاهدان دي چې د دیموکراسۍ نظام یې په یو ډول منلی دی.
په افغانستان کې لا تر اوسه د ډیموکراسۍ پوره ترویج او تطبیق نه دی شوی، بلکې که لږ واضح ووایي روان جهاد چې د طالبانو لخوا روان دی د دیموکراسۍ پلو د ډیر جسارت مخه ډب کړې ده، خو یوازې د کافرانو وجود د مسلماني ټولني په اخلاقو، عاداتو او عنعناتو ناوړه اغېز کړی دی، خدای مکړه که لکه د کابل غلامان چې یې تمه لري، د اساسي قانون په ضمن کې د ډیموکراسۍ تطبیق ته زمینه برابره شي، د سپېڅلي جهاد او قتال زلزله خېز خوځښتونه خاموش شي، کافران د ارام سا واخلي، د جرمونو موجونه به د اسمان ته پورته شي چې بیا یې نه درباري ملایان او نه هم نور قرباني شوي افغان علاج کولای شي.
د معاصر فرعون اجیران او د جرمنۍ خېمې د تالار لاټیان (مفتیان) په کومه خوله او سترګو د اسلام سپېڅلي حکم فرض عین جهاد حرام بللی دی؟ او د پورته تشریح شوي اساسي قانون منلو او قبلولو ته سپېڅلي مسلمانان دعوتوي ؟ دغه د طاغوت پیروان نه په ځان رحم لري او نه په مسلمان افغانو .
څلورم: د تالاري فتوی په شپږمه صفحه کې د طاغوت اجیرو مفتیان سپیناوی کوي چې ګواکې دوی اسلام ته وفادار دي، د استناد په توګه ذکرکوي چې د دوی د محاکموفیصلې د شریعت په رڼاکې تر سره کېږي، په دې رابطه یې داسي لیکلي دي :
د افغانستان اسلامي دولت ټولې محکمې د محمدي صلی الله علیه و سلم غراء شریعت په رڼا کې فیصلې کوي. ځکه د افغانستان ټول مدني او جزائي قوانین د شریعت او فقهي اصولو پر بنسټ تدوین شوي دي. د فتوی (۲) مخ.
دغو اجیرو مفتیانو دې خبري ته لږ وروسته سر ورښکاره کوو چې د کابل د محاکمو مدني او جزائي قوانین له شرعي اصولو او د حنفي مذهب له مقرراتو سره څومره مطابقت لري ؟

دوی پورتنۍ ځرګندونې د دې لپاره کړې دي چې حکومت ته د اسلامي نوم ورکولو استناد پرې وشي، خو دا ډول استناد په دې دلیل غلط دی چې محاکم په دې کې هیڅ رول نلري (چې حکومت اسلامي دی یا غیر اسلامي) ځکه محاکم یوازې د اشخاصو فیصلې کوي، د قوانینو سلطان اساسي قانون دی د هغه اتباع کېږي، دهغه له مخه د محاکمو د قانون تعدیل، الغا، ترمیم او تصویب ټول ممکن او را روان دي، کلي او اجتماعي حکمونه اساسي قانون کوي، د حکومت په اسلامي کیدو او غیر اسلامي کیدو کې اساسي قانون رول لري، نه د محاکمو جزئي فیصلې، د اساسي قانون کیفیت خو موږ مخکې تشریح کړ چې دیموکراسۍ ته ژمن دی، دیموکراسۍ د داسي بې دینه حکومت قیام غواړي چې پای یې مطلق سیکولرزم وي او له اسلام سره یې روابط ورو ورو پرې شي، ځکه ډیموکراسۍ د یونانیانو مفکوره ده، وخت په وخت بې دینه خلکو پراخوالی ورکړی او اوس د غربي ټولنې د کړدود او ژوند اساس تشکیلوي، چې له کوم آسماني دین، نبي، مسلمان عالم، فقهي او یا بل کوم معتبر اسلامي مرجع سره اصلاح ارتباط نه لري.

بل اړخ یې دادی چې د کابل مدني قانون د مصر عربي هیواد له مدني قانون څخه سرچینه اخلي او د مصر مدني قانون مصري قانون پوه السنهوري باشا د فرانس له مدني قانون څخه په اخیستنه ترتیب کړی دی، چې فرانسوي قانون پوه "بونا برت" د نابلیون د اداري مشر په (۱۸۰۴ م) کال کې نړۍ ته وړاندي کړی وو، د فرانسې مدني قانون چې د افغانستان د مدني قانون سرچینه ګڼله کېږي له جرمني، فرانسوي، بریطانوي، امریکایې او اسلامي قوانینو څخه جوړه شوې یوه مخلوطه مجموعه ده.

اوس لوستونکي پوهیدلی شي چې د افغانستان د مدني قانون سرچینه د فرانسې مدني قانون وي، بیا به د حنفي مذهب له اصولو سره څومره موافق وي.

همدا سبب وو چې په (۱۹۹۲م) کال کې یو شمیر عالمانو د افغانستان په مدني قانون باندي عمل تعطیل کړی، ترڅو چې د هغه تهذیب کېږي او د حنفي مذهب له اصولو سره موافق شي، همدا راز د عثماني خلافت خلیفه سلطان عبدالحمید الثاني د خپل دولت عدلي وزیر قدري باشا ته وویل: د

فرانسې مدني قانون ټولي نړۍ ته منظور شوی دی، نو که موږ هم په خپل دولت کې استفاده ترې وکړو ؟ هغه انکار وکړی پوره دوه کلونه سلطان او عدلي وزیر یو له بل سره په ډغره وو، خو اخیر عدلي وزیر قناعت ورکړ، بیا د سلطان په موافقه دعدلي وزیر قدري باشا په (۱۳۹۳هق) کال کې د فرانسې د مدني قانون په مقابل کې له حنفي فقه څخه سوچه مدني قانون (مجلة الاحکام العدلیه) جوړه کړه اسلامي نړۍ یې د مقبولیت تود هرکلی وکړ، د اساسي قانون او مدني قانون تېر بحث ته په کتو دکابل د جزا کوډ هم همدا حیثیت لري.

که د فهم لپاره یوه بله اسانه مسئله مطرح کړو، که واقعا د کابل اداري قضایي او جزایي قوانینو د حنفي فقهې په اساس پریکړې کولای، نو آیا هغه افغانان چې د کفر په وړاندې جهاد کوي، سختۍ ګالي، له سرو کفارو امریکایانو سره په مشقت باره جګړه اخته دي، هغوی به تقدیر کیدل او که به په زندانونو کې پراته وو؟

دا اوس ورشئ د کابل او بګرام، بیا د ولایاتو زندانونه وګوري چې اکثریت په کې دیني عالمان، د قرآن حافظان او د دین طالبان بندیان دي، آیا دا قضاوت د حنفي فقهې دی چې دومره ډیر علماء باید د جهاد په جرم تر تورو تمبو شاته پراته وي او حتی د اعدامونو او درنو سزاګانو مستحق وګرځي؟ کلا وحاشا، دا په هیڅ صورت د حنفي فقهې د یوې جزئي حکم هم نشي کیدلی.

همدا ډول که واقعا حنفي فقه په کابل کې حاکمه وای، د امریکایانو له راتګ او د لاسپوڅي رژیم له جوړیدو څخه اولس کاله پوره کیږي، نو موږ په ولایاتو او مرکز کې څو د قصاص، څو د زنا، څو د غلا او څو د شرب حدود او جزاګانې لرو؟ ورشئ یو مثال خو یې را پیدا کړئ. آیا ټولنه اصلاح شوي دا جرائم واقع کیږي نه او کنه د حنفي فقهې احکام بدل شوي دي؟ واقعا دا مثالونه د کابل مفتیانو ته د شرم او خجالت ځای دی.

پنځم: د معاصر استکبار اجیرو مفتیانو د خپلي فتوی له (۷) تر (**۱۵**) صفحې پوري د سولې اهمیت، ضرورت او وجوب تر عنوان لاندي د سولې په رابطه ګڼ شمېر قرآني آیتونه او نبوي حدیثونه او د اصحابو اثار ذکر کړې دي:

د تالاري فتوی په متن کې لولو : په افغانستان کې د سولې اهميت، ضرورت او وجوب: الله سبحانه و تعالی خپل رسول صلی الله عليه وسلم ته د مکې د مشرکينو په اړه وايي چې کله هغوی سولې ته مېلان وښود نو ته هم سولې ته مايل شه. په دې اړه قران عظيم الشان داسې فرمايي:

قال الله تعالی {وَاِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ} [الأنفال: ٦١].

**ژباړه:** او [ اې پيغمبره صلی الله عليه وسلم] ! که دښمن د روغې جوړې خوا ته مېلان ولري،

نو ته هم د هغې لپاره تيار او سه او پر الله توکل وکړه. په يقيني ډول هماغه د هر څه اورېدونکی او په هر څه پوهېدونکی دی . د تالاري فتوی ص (۹ ).

نو ځکه مونږ علماء د افغانستان په جګړو کې په ښکيلو غاړو غږ کوو چې د خپلو مسلمانو وروڼو په مقابل کې جګړه - هغه جګړه چې پايله يې د تباهۍ او بې ګناه انسانانو له وژلو پرته نور څه نه ده پرېږدي او د سولې لاره خپله کړي. د خپلو مسلمان وروڼو او اسلامی جمهوريت سره د سولې خبرو اترو ته کېنی. د تالاري فتوی ص (۱۴) .

**د سولې له رنګين عنوان څخه په اجتماعي کقوقو برید:**

مکار دښمن سوله برمته کړې ده، هغه سوله نه غواړي چې الله جل جلاله او د هغه رسول صلی الله عليه وسلم د هغې توصيه کړې ده، فرېب ګر دښمن هغه سوله نه غواړي چې افغان مظلوم ولس ورته اړتيا لري، مکار دښمن هغه سوله نه غواړي چې د ده اهداف په کې خوندي نه وي، مکار دشمن هغه سوله نه غواړي چې د پردې تر شادی په واک باندي مسلط نه وي .

سوله (صلحه) ډېر جالب او زړه راښکونکی زرين عنوان دی، سولې ته د هيلو انتظار څلوېښت کلن شو، د ټولو افغانانو د زړونو ارمان دی.

سوله د هغو لوړو اهدافو له جملې څخه ده چې الله جل جلاله خپل پيغمبر رسول الله صلی الله عليه وسلم د دې لپاره مبعوث کړی دی چې سوله تامين کړي، سوله الهي حکم دی، سولې ته رسول الله دعوت چلولی دی، سوله د

شرعي سیاست برخه ده، سوله شرعي امر دی، سوله د شرعي شرائطو او اصولي مقرراتو په چوکاټ کې لوړ مصلحت او اصلاح ده.
خو برعکس د شرعي احکامو او اصولي مقرراتو په خلاف سوله اصلاح نه؛ بلکي فساد دی، حتی نه بخښونکی جنایت دی، په الهي شرع کې د سولې د مقبولیت لومړی شرط دا دی چې په سوله کې به د اسلام لوړوالی، د مسلمانانو خیر او نفعه نغښتې وي، په کومه سوله کې چې د عامه مسلمانانو دنیوي او اخروي شر او ضرر نغښتی وي هغه صلحه اصلاح نه ده بلکي شر عظیم او فساد طویل دی.
مکار دښمن د سولې له رنګین عنوان څخه د مسلمانانو په اجتماعي حقوقو برید کوي هغه پایمالوي، د مکار دښمن په ابتکار چې د سولې په نوم کومه ډنډوره اعلان شوه دا هغه سوله نه ده، چې قرآني آیتونو د هغې توصیه کړې ده، یا د افغان مسلمان ولس ورته اړتیا ده، بلکي د مکار دښمن د جګړې د یو بل اړخ یا تکتیک دی، د جګړې په ګرمو سنګرونو کې د دوی د شکست او ماتې څخه وروسته دوی غواړي خپلو موخو ته د سولې په عنوان ورسیږي، ځکه د جګړې مقابل او اصلي لوری چې په افغانانو یې جګړه تپلې او پیل کړې ده امریکایان دي، هغوی ځانونه شاته اچولي دي، دکابل دګوډاګې اداري جارچیانو ته یې د سولې د نغارې جار په لاس ورکړی دی، هرڅوک په دې پوهیږي چې د کابل ډنډورچیان د سولې او جګړې په اختیار او نه اختیار کې هیڅ واک نلري، نه یې جګړه پیل کړې او نه یې په درولو کې رول لرلای شي، نو ځکه ویلای شو چې د سولې په رابطه دکابل د جارچیانو ډنډوره امریکایي توطیه ده چې په دې وسیله له موقع څخه د خپل ځان په ګټه استفادې کوي.
مکار دښمن په دې تدبیر سره غواړي چې د ساده لوحو عامه ذهنیت تېرباسي او داسي ویناوي راپورته کړي: چې ( دکابل اداري ومنله چې د سولې په رابطه بې قید او شرطه خبري کوو - آن د اساسي قانون ترمیم هم منو – که طالبان د رسمي ګوند په شکل کې ځان ثبت غواړي هم یې منو ).
دوی فکر کوي چې اوس به نو عامه ذهنیت دا سوال کوي چې مجاهدین ولې سوله نه کوي ؟

په دې تدبير سره مکار دښمن غواړي چې عامه ذهنيت متزلزل کړي د مجاهدينو په خلاف يې ولمسوي او د يوې وسېلې په توګه کار ترې واخلي.
حقيقت داسي دی چې د مجاهدينو له رهبري سره د ټولو مشکلاتو احساس شته، او د مسلمانانو له ځور او اذيت څخه خوند نه اخلي، او نه د پرديو تر فشار لاندي دي، بلکې ځومره مشکلات چې په عامه ولس باندي تېرېږي دهغو لس چنده مجاهدينوته متوجه دي، په حقيقت کې هغه سوله چې کافران يې غواړي د څلوېښت کلن جهاد ټولي ثمرې له منځه وړي او مسلمان ولس ته د دنيوي او اخروي امورو په لحاظ سخته ضربه ورکوي او دروند زيان ور اړوي.
عامه مسلمان ولس دي او مجاهدين بايد بيدار او ويښ واوسېږي مکار دښمن د سولې ترجالب عنوان لاندي لوی شيطاني جال خپور کړی دی، په دې توطيې سره دښمن غواړي چې مسلمانان په خپل منځ کې يو د بل ګرېوانو ته لاس واچوي او په يو بل ډول جګړه کې يې ښکېل کړي.
حقيقت دا دی چې مکار دښمن د سولې تر عنوان لاندي د اسلام د مقدس دين د له منځه وړلو لپاره ستره توطيه جوړه کړې ده، د همدې لپاره يې څوتنه اجاره شوي او درباري اشخاص ګمارلي دي چې د سولې په رابطه د ملت غولولو او د ساده لوحو خلکو د تېر ايستلو په غرض پراخ تبليغات وکړي، پروګرامونه او غونډې جوړي کړي په تلوېزيونونو او راډيوګانو، مجلو او اخبارونو کې د دې لپاره کمپاين وچلوي.
د مسلمانانو اصل دښمن ړوند دی د الهي احکامو په تحريف نه پوهېږي، د الهي احکامو د تحريف په سلسله کې بيا د کابل د اداري کرايه شوي درباريان مهارت لري، چې د قرآني آيتونو ، او نبوي احاديثو د تحريف لارې ورمعلومې دي، د رټل شوو درباريانو د تحريفاتو له جملې څخه يو د سورت انفال (٦١) آيت دی چې د سولې په رابطه الهي حکم بيانوي، د آيت هغه معنی او حقيقت چې مفسرينو، مجتهدينو، محدثينو او پياوړو عالمانو تعيين کړی دی، د غو بې احساسو يې د مرادي معنی په تحريف لاس پوري کړی دی او د کافرانو په ابتکار د سولې په تبليغاتو کې سر چپه استفاده ترې کوي، د سولې د نه کولو د

ملامتیٔ ګوته د مجاهدینو په لوري ځنډي چې مجاهدین ملامت دي په کوم دلیل سوله نه کوي ؟.

زه دیو دیني عالم په صفت د دغه آیت مطلب د فقهاوو او مجتهدینو له نظره تشریح کووم چې اصل مراد ترې جوت شي او له هغه وروسته چې د سولې تر زریني پردې شاته مکار دښمن شوم اهداف پټ کړې دي هغه به تشریح کړم، له هغه وروسته د دښمن هغه فسادات چې عامه مسلمانان په دیني او دنیوي لحاظ ترې متضرر کېږي د مسلمانانو د قضاوت مخې ته ږدم او دوی دغه مهلک زهر چې د سولې په عسلوکې یې ګډ کړي دي د عامه مسلمانانو د هلاکت او بربادیٔ سبب دي د لوستونکو مطالعې ته وړاندې کوم.

قال الله تعالی {وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ} [الانفال: ۶۱].

**ترجمه** : په دې شرط که دوی (مشرکینو) د جګړې پرېښودو (سولې) ته میلان وښود، ته هم میلان ښکاره کړه، او امور الله ته وسپاره (په هغه تکیه وکړه) ځکه هغه (د دوی د ویناوو) اوربدونکی دی او (په نیتونو یې) ښه خبر دی.

اجیرو مفتیانو او د سولې جارچیانو د پورته آیت معنی، د تالاري فتوی صـ (۹) کې مطلقا او غیرمقیده ذکر کړې ده: (که دښمن سوله کوله، ته هم په الله توکل کړه سوله ورسره وکړه) له دې آیت څخه داسې مطلقه معنی اخیستل د دوی تحریف دی .

د ټولو فقهاوو، مجتهدینو، په اجماع د پورتني آیت معنی مطلقه نه ده بلکې په دې توګه مقیده ده که په سوله کې مسلمانانوته خیر او نفعه وه ، نو په الله توکل کړه سوله ورسره وکړه.

د پورته ذکر شوي آیت د معنی تقیید د فقهاوو په لاندې عباراتوکې مطالعه کړی .

وقال أكمل الدين البابرتي الحنفي : هَذِهِ الْآيَةَ مَحْمُولَةٌ عَلَى مَا إذَا كَانَتْ فِي الْمُصَالَحَةِ مَصْلَحَةٌ لِلْمُسْلِمِينَ بِدَلِيلِ آيَةٍ أُخْرَى وَهِيَ قَوْله تَعَالَى { وَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إلَى السَّلْمِ

وَأَنْتُمْ الْأَعْلَوْنَ } وَبِدَلِيلِ الْآيَاتِ الْمُوجِبَةِ لِلْقِتَالِ وَإِلَّا لَزِمَ التَّنَاقُضُ لِمَا أَنَّ مُوجِبَ الْأَمْرِ بِالْقِتَالِ مُخَالِفٌ لِمُوجِبِ الْأَمْرِ بِالْمُصَالَحَةِ فَلَا بُدَّ مِنْ التَّوْفِيقِ بَيْنَهُمَا وَهُوَ بِمَا ذَكَرْنَا ... ( إذَا لَمْ يَكُنْ خَيْرًا ) حَيْثُ لَا يَجُوزُ لِلْإِمَامِ أَنْ يُوَادِعَهُمْ عَمَلًا بِقَوْلِهِ تَعَالَى { وَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إلَى السَّلْمِ } وَلِأَنَّ الْمُوَادَعَةَ تَرْكُ الْجِهَادِ صُورَةً وَمَعْنًى ، أَمَّا صُورَةً فَظَاهِرٌ حَيْثُ تَرَكُوا الْقِتَالَ ، وَأَمَّا مَعْنًى فَلِأَنَّهُ لَمَّا لَمْ يَكُنْ فِيهِ مَصْلَحَةٌ لِلْمُسْلِمِينَ لَمْ يَكُنْ فِي تِلْكَ الْمُوَادَعَةِ دَفْعُ الشَّرِّ فَلَمْ يَحْصُلْ الْجِهَادُ مَعْنًى أَيْضًا . العناية شرح الهداية ,كتاب السير، باب الموادعة (٥\٤٥٥) . دار الفكر .

**خلاصه مطلب:** علامه اکمل الدین د فقه د مشهور کتاب الهدایه شارح ویلي دي : د مذکور آیت محمل هغه سوله ده چې په هغه کې د مسلمانانو نفعه نغښتې وي.

په دې دلیل چې( د سورت محمد په(۳۵ ) آیت کې ) الله جل جلاله فرمايي (تاسو چې د کافرانو په خلاف د جهاد په وجوب عالمان یاست ): نو مه بې زړه کېږئ (دښمن ته ) د سولې وړاندیز مه کوئ، ځکه تاسو پرې برلاس یاست.

او په دې دلیل چې له هغو آیتو سره یې تناقض دی چې د جهاد د وجوب امر ورکوي ، ځکه په ایت شریف کې د جګړې امر او تقاضا د سولې له امر او تقاضا سره مخالف دی، نو لازم دی چې د دواړو آیتونو ترمنځ توافق وشي او توافق په هغه توګه کېږي چې موږ ذکر کړ ( یعني که په سوله کې د مسلمانانو خیر وو ، سوله دې وکړئ ) او که په سوله کې مسلمانانو ته خیر نه وو، نو امام ته روا نه ده چې سوله وکړي ، بلکي د سورت محمد په(۳۵ ) آیت به عمل کوئ ( یعنی په جهاد به ټینګار کوي ) .

او په دې دلیل چې سوله د صورت او معنی په اعتبار د جهاد ترکول دي ، د صورت په اعتبار خو واضح ده، چې له جهاد څخه لاس اخیستل کیږي، او په معنوي لحاظ په دې اعتبار د جهاد ترک دی چې په دې سوله کې د مسلمانانو خیر نشته ، د دوی د شر دفعه ونشوه نو په معنوي لحاظ هم د جهاد مفاد حاصل نشو .

د علامه اکمل الدین له قول څخه څرګندېږي شوه که په سوله کې د مسلمانانو خیر نه وو نو سوله اصلاح نه ده بلکي فساد دی.

وَإِنْ لَمْ تَكُنْ الْمُوَادَعَةُ خَيْرًا لِلْمُسْلِمِينَ فَلَا يَنْبَغِي أَنْ يُوَادِعَهُمْ لِقَوْلِهِ تَعَالَى {فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إلَى السَّلْمِ وَأَنْتُمْ الْأَعْلَوْنَ} [محمد: ٣٥]، وَلِأَنَّ قِتَالَ الْمُشْرِكِينَ فَرْضٌ، وَتَرْكُ مَا هُوَ الْفَرْضُ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ لَا يَجُوزُ. المبسوط السرخسي (٨٦\١٠) هكذا في الفتاوى الهندية (١٩٦\٢).

**ژباړه:** علامه السرخسي په مبسوط کتاب کې ویلي دي: په کومه سوله کې چې د مسلمانانو خیر نه وي، سوله نامناسبه ده، په دې دلیل چې (د سورت محمد په (**۳۵**) آیت کې) الله **جل جلاله** فرمايي (تاسو چې د کافرانو په خلاف د جهاد په وجوب پوهیږئ) :نو مه بې زړه کیږئ (د ښمن ته) د سولې وړاندیز مه کوئ، ځکه تاسو پرې برلاس یاست او په دې دلیل چې له کافرانو سره جهاد فرض عمل دی، پرته له کوم عذره د فرض جهاد ترک جواز نه لري.

وقال إبن عابدين : (قَوْلُهُ - {وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ} [الأنفال: ٦١] أَيْ مَالُوا ... وَالْآيَةُ مُقَيَّدَةٌ بِرُؤْيَةِ الْمَصْلَحَةِ إجْمَاعًا - لقوله تعالى: {فَلا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ وَأَنْتُمُ الأَعْلَوْنَ} [محمد: ٣٥]- أَفَادَهُ فِي الْفَتْحِ. حاشية رد المحتار كتاب الجهاد (٢٤٧\٣). مكتبة رشيدية .

**ژباړه:** علامه ابن عابدین په رد المحتار کتاب کې ویلي دي: د سورت الانفال دغه آیت (که مشرکینو سولې ته میلان وښود نو تاسو هم میلان وښیی) د فقهاؤ په اجماع سره دا ایت د مسلمانانو په نفع او مصلحت مقید دی، په دې دلیل چې د سورت محمد په (**۳۵**) آیت کې الله **جل جلاله** فرمايي (د کافرانو په خلاف له جهاد څخه) مه بې زړه کیږئ (د ښمن ته) د سولې وړاندیز مه کوئ، ځکه تاسو پرې برلاس یئ . ردالمحتار.

وَقَدْ أَجْمَعَ الْفُقَهَاءُ عَلَى جَوَازِ الْمُهَادَنَةِ مَتَى كَانَتْ فِي ذَلِكَ مَصْلَحَةٌ لِلْمُسْلِمِينَ ... فَأَمَّا إِذَا لَمْ يَكُنْ فِي الْمُوَادَعَةِ مَصْلَحَةٌ فَلاَ يَجُوزُ بِالإِجْمَاعِ . حاشية الطحطاوي على الدر المحتار ٢ / ٤٤٣، الموسوعة الفقهية الكويتية (٢٣٢\٢٥) .

**ژباړه:** د فقه په الموسوعة کتاب کې ويل شوي دي: ټول فقهاء په دې متفق دي، چې سوله هغه وخت جايز ده، چې د مسلمانانو نفعه او مصلحت په کې نغښتې وي، اوکه په سوله کې د مسلمانانو نفعه او مصلحت نه وو، نو بيا سوله کول په اجماع د فقهاوو جواز نه لري.

أَجْمَعَ الْفُقَهَاءُ عَلَى تَقْيِيدِهَا بِرُؤْيَةِ مَصْلَحَةٍ لِلْمُسْلِمِينَ فِي ذَلِكَ بِآيَةٍ أُخْرَى هِيَ قَوْلُهُ تَعَالَى : { فَلاَ تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ وَأَنْتُمُ الأَعْلَوْنَ } (سورة محمد / ٣٥.) الموسوعة الفقهية الكويتية (٤٢\ ٢١٢) .

**ژباړه:** د فقه په الموسوعة کتاب کې ويل شوي دي: ټولو فقهاؤ په دې اجماع کړې ده چې د (سورت الانفال: (۶۱) آيت کې سوله کول د (مسلمانانو) په نفعه او مصلحت مقيد دی، په دې دليل چې د سورت محمد په(**۳۵**) آيت کې الله جل جلاله فرمايي ( د کافرانو په خلاف له جهاد څخه مه بې زړه کېږئ (دښمن ته) د سولې وړانديز مه کوئ ، ځکه تاسو پرې برلاس يئ .

وقال إبن نجيم المصري الحنفي : وَقَيَّدَ بِالْخَيْرِ؛ لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ بِالْإِجْمَاعِ إذَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ مَصْلَحَةٌ . البحرالرائق (٥\١٣٢) .

**ژباړه:** علامه ابن نجيم په البحرالرائق کتاب کې ويلي دي ، سوله په خير او نفعه مقيده ده، د اجماع په حکم هغه سوله هيڅ جواز نه لري چې په هغه کې مصلحت او خير نه وي نغښتی. البحرالرائق.

وقال فخرالدين الزيلعي الحنفي : بِخِلَافِ مَا إذَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ خَيْرٌ حَيْثُ لَا يَجُوزُ لِقَوْلِهِ تَعَالَى { وَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوَا إلَى السَّلْمِ وَأَنْتُمْ الْأَعْلَوْنَ } وَلِأَنَّهُ لَمَّا لَمْ يَحْصُلْ فِيهِ دَفْعُ شَرِّهِمْ كَانَ الصُّلْحُ تَرْكًا لِلْجِهَادِ صُورَةً وَمَعْنًى وَهُوَ فَرْضٌ فَلَا يَجُوزُ تَرْكُهُ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ . تبيين الحقائق المعروف بالزيلعي , كتاب السير (٣\٢٤٦) دار الإشاعة .

**ژباړه:** علامه فخرالدين (الزيلعي ) په تبيين الحقائق کتاب کې ويلي دي: که په سوله کې خير نه وو ، هيڅ جواز نه لري، په دې دليل چې د سورت محمد په (**۳۵** ) آيت کې الله جل جلاله فرمايي ( د کافرانو په خلاف جهاد څخه ): مه بې زړه کېږئ (دښمن ته) د سولې وړانديز مه کوئ، ځکه تاسو پرې برلاس

یاست. او په دې دلیل چې په سوله کې د کافرانو د شر دفعه نه وي ، بیا خو سوله د صورت او معنی په اعتبار سره د جهاد ترک شو ، جهاد فرض دی بې عذره یې پرېښوول جواز نلري. تبیین الحقائق .

وفی تفسیر المدارک لحافظ الدین ابو البرکات النسفي الحنفي:

قال الله تعالى :{ فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ وَاللَّهُ مَعَكُمْ وَلَنْ يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ }[محمد: ۳۵] . {فَلاَ تَهِنُواْ} فلاتضعفوا ولا تذلوا للعدو {وَتَدْعُواْ إِلَى السلم} أي ولا تدعوا الكفار إلى الصلح { وَأَنتُمُ الأَعْلَوْنَ} أي الأغلبون وتدعوا مجزوم لدخوله في حكم النهي { والله مَعَكُمْ } بالنصرة أي ناصركم { وَلَن يَتِرَكُمْ أعمالكم } ولن ينقصكم أجر أعمالكم . تفسير المدارك (٤\٢٤٤) .

**ژباړه :** ( د کافرانو په خلاف جهاد څخه ) مه بې زړه کېږئ ، ( دښمن ته ) د سولې وړاندیز مه کوئ تاسو برلاس یاست ، ځکه د الله (نصرت) ستاسو ملګری دی ، هیڅ کله به ستاسو د اعمالو اجر کم نکړي ، د (تدعوا ) کلمه په دې سبب مجزومه ده چې د نهی تر حکم لاندې ده . تفسیر مدارک علامه نسفي .

وقال محمد الأمين الشنقيطي فی تفسيره:

وَقَوْلُهُ تَعَالَى : وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ جُمْلَةٌ حَالِيَّةٌ ، أَيْ : فَلَا تَضْعُفُوا عَنْ قِتَالِ الْكُفَّارِ ... وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ أَيْ وَالْحَالُ أَنَّكُمْ أَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ ، أَيِ الْأَقْهَرُونَ وَالْأَغْلَبُونَ لِأَعْدَائِكُمْ ، وَلِأَنَّكُمْ تَرْجُونَ مِنَ اللَّهِ مِنَ النَّصْرِ وَالثَّوَابِ مَا لَا يَرْجُونَ . وَهَذَا التَّفْسِيرُ فِي قَوْلِهِ : وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ هُوَ الصَّوَابُ . أضواء البيان في تفسير القرآن بالقرآن .

**ژباړه:** علامه محمد الامین ویلي دي: د ( انتم الاعلون ) جمله حالیه ده ، معنی د آیت داسې ده: تاسو د کافرانو سره له جګړې څخه مه بې زړه کېږئ ، ځکه پرې برلاس یئ ، په دې سبب چې تاسو له الله څخه د ( نصرت او ثواب ) تمعه لرئ ، چې دوی یې نلري. دغه تفسیر د دې ایت په هکله حق تعبیر دی .

وقال العلامة محمود الصافي:

(الفاء ) رابطة لجواب الشرط المقدّر (لا ) ناهية جازمة (الواو ) عاطفة (تدعوا ) مضارع مجزوم معطوف على (تهنوا ) ، (إلى السلم ) متعلّق ب(تدعوا ) ، (الواو )

حالیة والثانیة استئنافیّة والثالثة عاطفة... (معکم) ظرف منصوب متعلّق بالخبر. وجملة: «تهنوا ...» لا محلّ لها جواب شرط مقدّر أي: إذا علمتم وجوب الجهاد فلا تهنوا، وجملة: «تدعوا ...» معطوفة على جملة تهنوا. وجملة: «أنتم الأعلون» في محلّ نصب حال. وجملة: «الله معکم» لا محلّ لها استئنافیّة. وجملة: «لن یترکم ...» معطوفة على جملة الله معکم. الجدول في إعراب القرآن, المؤلف: محمود بن عبد الرحیم صافي.

د (فلا) په کلمه کې، فاء جواب د مقدر شرط دی، (لا) جازمه ناهیه ده، (واو) عاطفه دی، (تدعوا) مجزومه مضارع په (تهنوا) عطف دی، (الی السلم) په (تدعوا) پوري تعلق لري، لومړی واو حالیه دویم استئنافیه او دریم عاطفه دی، (معکم) ظرف منصوب په خبر پوري تعلق لري، او جمله (تهنوا) محلي اعراب نلري ځواب د مقدر شرط دی، تقدیر یې داسي دی: کله چې تاسو (د کافرانو) په مقابل کې د جهاد په وجوب پوهیږئ، نو مه بې زړه کیږئ (دښمن ته) د سولې وړاندیز مه کوئ، ځکه تاسو پرې برلاس یاست.

نتیجه: له تېرو مباحثو څخه معلومه شوه چې په کومه سوله کې د مسلمانانو خیر او نفعه نه وي هغه سوله جایز نه ده، اصلاح نه ده؛ بلکې فساد عظیم او شر طویل ده، نو په کابل کې د ناستو امریکایي مفتیانو استدلال چې د سولې آیت شریف مطلق بیانوي او بیا د مجاهدینو پورې الزامونه لګوي چې ګنې هغوی د الله حکم نه مني، مطلقا بي علمي او د هغوی له شریعت څخه په نا خبری او بې پروایي دلالت کوي.

**د مکار دښمن په ابتکار د پلان شوي سولې اضرار:**

مکار دښمن غواړي چې د سولې تر جالب عنوان لاندې د سنجول شوي پلان په وسیله غواړي خپله هغه ناکامي چې د جګړې په ډګر کې ورسره مخ شو، د سولې تر پوښ لاندې تر لاسه کړي، د اسلام مقدس دین مهم احکام چې د اسلامي نظام استحکام دی باید مخه یې ونیسي او د غرب لخوا راغلي او تپل شوي غیر شرعي تغیرات رسما په افغانانو وتپي، د کابل ګوډاګیان په امریکایانو باندې د یوې خبرې د تحمیلولو او منلو صلاحیت او قدرت هم نلري، ځکه د دوی او د

دوی د اولادو رزق او روزي ، اکمال ، تمویل ، تجهیز او وجود په افغانستان کې د امریکایانود پاتې کېدو او استقرار پوري تړلی ده.
اصلي مکار دښمن (امریکایانو) د کابل بې واکه اداره د یو فریب له مخې د سولې په وړاندیزونو ګمارلې ده، که دوی وکولای شي چې له دې لارې خپلو شومو اهدافو ته ځانونه ورسوي، چې هم یې جګړه په مقابل کې ودرېږي، هم یې ځواکونه په افغانستان کې پاتې شي او هم یې نظامي او سیاسي اجنداوې تر لاسه شي، همدا ډول دوی هیله لري چې په دې تدبیر سره به مجاهدین خلع سلاح او تیت پرک کړي، بیا که احیانا په سوله کې کوم داسې وړاندیز عملي کېږي چې د دوی هدف ته خنډ جوړ کړي، نو به په آسانۍ سره د مجاهدینو لاس تاوو کړي او خپلې غوښتنې به پرې ومني، لکه د شراوفساد په ډلګیو او یو شمیر پخوانیو ګوندونو باندې یې چې همدا اوس او عملا منلې دي.
تجربو ښودلې چې امریکا هیڅکله هم نه له چا سره په وعده وفا کوي او نه په خپل لوز درېږي، له ایران سره د فرجام په نامه (هستوي) توافق او بیا ترې وتل یې ښه بېګله ده، چې هم یې په ایران باندې د هغوی مهم هستوي پرمختګ له یو کال څخه زیاته موده متوقف کړ، هم یې د بین المللي څارونکو لخوا مهم او پټ ځایونه عکاسي او له نظره تیر کړل او هم یې بندیزونه بیرته پرې اعاده کړل.

### د مکار دښمن اهداف :

د غلام دښمن د سولې په وړاندیزونو کې د اصلي دښمن (امریکا) دوه مهم هدفونه نغښتي دي، دوی غواړي چې د سولې تر پوښ او عنوان لاندې خپل دواړه مهم اهداف په سالمه توګه ترګوتو کړي:

### لومړی هدف :

امریکا هڅه کوي چې په هره طریقه کېږي په افغانستان کې خپل حضور وساتي، چې وار دمخه د کابل لاسپوڅو امریکایانو ته (۹) اډې او د مصئونیت تړون ور امضاء کړی دی، په دې سره یې د هیواد استقلال له منځه وړی، او مستقیما یې د دوی اشغال ته د قانونیت ورکولو هڅه کې ده.
امریکایي اشغالګرو په دې دسیسه سره د کابل د ادارې لاس اوپښې تړلې

دي، دښمن غواړي چې د دوی په ابتکار د پلان شوې سولې په ضمن کې د افغانانو په غاړه کې دغه د اشغال او غلامۍ طوق سالم پاتي شي، نو بناء داسې سوله کول یا منل د افغان مسلمان اولس، هیواد او اسلامي ارزښتونو په مقابل کې بې پروایي او مطلقا ضرر دی.

له امریکا سره داسې معاهده ساتل د هیواد د سرمایې لیلام هم دی، ځکه چې امریکایي نړیوالو غلو او داړه مارانو ته قانوني حق ورکوي چې په خپل سر د هیواد مشترکه سرمایه، زېرمې او معدنیات استخراج کړي، پخپله خوښه یې یوسي او افغانانو ته له هغو څخه دوه یا درې سلنه ګټه ورکړي.

که یې څوک مخنیوی کوي، او یا یې په مقابل کې غږ پورته کوي، هغه به د امریکا د ګټو مخالف او تروریست وي، زندان او مرګ به یې انتظار باسي.

**دوهم هدف :**

د مکار دښمن دوهم اساسي هدف د غربي کلچر او د یموکراسۍ پلي کول دي، ډیموکراسۍ د غرب هغه نړیواله طرحه ده چې غواړي ورسره ټولنه له اسلام څخه مطلقا بیګانه کړي او د سیکولرزم په ویروس یې اخته کړي.

دا توطئه د دښمن لخوا په جوړ شوی اساسي قانون کې په شپږمه ماده کې منل شوی اصل دی چې د دیموکراسۍ پردې مفکوره لکه پرونی کمونیزم زموږ په ملت باندې مني او ټول کیف او کم یې مرعي الاجرا بولي.

مکار دښمن غواړي چې د سولې تر زرین عنوان لاندې دغه اصل په مجاهدینو باندې هم ومني او د یوې وسېلې بڼه ورکړي، په داسې حال کې چې دیموکراسۍ وسیله نه بلکې یوه مفکوره، باور او عقیده ده.

هغه سوله چې اشغالګر دښمن یې په دوهم لاس یعني د کابل ادارې په وسېله غوښتنه کوي او ځیني بې احساسه اشخاص یې واقعیت بولي او د هیواد د ښې راتلونکې وسیله یې ګڼي، هغه یو ابدي مهلک زهر دي چې که خدای مه کړه وڅکل شول افغانستان به د ابد لپاره د هلاکت کندې ته غورځوي، هغه ضرر چې بل هیڅ بهرني او کفري اشغال دې ملک ته نه وو رسولی.

**د مسلمان اولس پنځه ګوني اجتماعي حقوق :**

د شرعي مصلحت له مخي د مسلمان اولس هغه اجتماعي او مشترک حقوق چې په عامه ژوندکې د ديني او دنيوي مصالحو قيام د دوی په وجود او استقرارپوري تړلی دی، د اصولو په اصطلاح کې د (ضروریاتو) په نوم يادیږي.
که دغو حقوقوته ضرر متوجه شي د ټولنې، ټول مصالح له منځه ځي، همدا لامل دی چې د دغو حقوقو د ساتنې لپاره د ضرورت په وخت کې په شرعي احکاموکې تغیر راځي، د بېلګي په توګه د مخمصي په حالت کې د ژوند، عقل، او عضوي د بقاء لپاره له حرامو خوارو څخه د مباحاتو په توګه استفاده کېږي.
د مسلمانانو د عامه مصالحو او منافعو اساسي، اجتماعي، مشترک حقوق پنځه دي.
وَالضَّرُورِيَّاتُ عِنْدَ الأُصُولِيِّينَ هِيَ : الأُمُورُ الَّتِي لاَ بُدَّ مِنْهَا فِي قِيَامِ مَصَالِحِ الدِّينِ وَالدُّنْيَا ، بِحَيْثُ إِذَا فُقِدَتْ لَمْ تَجْرِ مَصَالِحُ الدُّنْيَا عَلَى اسْتِقَامَةٍ ، بَل عَلَى فَسَادٍ وَتَهَارُجٍ ، وَفَوْتِ حَيَاةٍ ، وَفِي الأُخْرَى فَوْتُ النَّجَاةِ وَالنَّعِيمِ ، وَالرُّجُوعُ بِالْخُسْرَانِ الْمُبِينِ وَهِيَ : حِفْظُ الدِّينِ ، وَالنَّفْسِ ، وَالْعَقْل ، وَالنَّسَبِ ، وَالْمَال ، وَهَذَا التَّرْتِيبُ بَيْنَ الضَّرُورِيَّاتِ مِنَ الْعَالِي إِلَى النَّازِل هُوَ مَا جَرَى عَلَيْهِ فِي مُسَلَّمِ الثُّبُوتِ وَشَرْحِهِ (فواتح الرحموت) . وَهُوَ - أَيْضًا - مَا جَرَى عَلَيْهِ الْغَزَالِيُّ فِي الْمُسْتَصْفَى مَعَ اسْتِبْدَال لَفْظِ النَّسْل بِلَفْظِ النَّسَبِ . الموسوعة الفقهية الكويتية (۲۰۷\۲۸) . و الموسوعة ج(۲۲٤\۱۰) . و الموسوعة ج (۳۰\صـ ۱٥). و الموسوعة ج(۲٤۷\۱٦) هكذا في المصباح صـ (٤٤٥) للتقي العثماني .
**ژباړه:** د اصولو الفقه د عالمانو په نزد ضروريات هغه امور دي چې د دين او دنيا ټول مصالح په دې توګه پوري تړلي دي، که هغوی معدوم شي دنيوي ژوند له خپل قلمرو څخه وځي، مفاسد را منځ ته کېږي ، د جنګونو او جګړو دروازه پرانستل کېږي، د ژوند حق اخيستل کېږي، او د آخرت په اعتبار د نجات وسيله له منځه ځي، د جنت له نعمتونو محرومېت راځي، له بد عاقبت سره مخ کېږي ، دغه امور پنځه دي، د دين ساتنه، د نفس ساتنه، د عقل ساتنه، د نسب او نسل ساتنه او د مال ساتنه.

ضروریات په همدې ترتیب سره چې یادونه یې وشوه، اهمیت هم لري، لومړی یې لومړی درجه اهمیت لري، دوهم یې دوهمه درجه او دریم یې دریمه درجه همداسې نور.
دا هغه ترتیب دی په مسلم الثبوت کتاب کې او د هغه په شرح فواتح الرحموت کې یې یادونه شوی، همدا راز امام الغزالي په مستصفی کې له یوه تغیر سره ذکر کړی دی چې د نسب د لفظ په عوض کې د نسل لفظ راوړی دی. الموسوعة والمصباح .

**لومړی: د اسلام د مقدس دین ساتنه**

که خدای مه کړه د دین ساتنه ونه شي د دنیا او آخرت ټول مصالح او منافع له منځه ځي ، المصباح فی مناهج الافتاء ص(**۴۴۵** ) الموسوعة الفقهیة (۲۰۸\۲۸ ) .

**دوهم : د نفس ساتنه**

که د نفس ساتنه او تحفظ ونه شي نو وژنوته زمینه برابرېږي، قتل عام رامنځ ته کېږي، نسل کشي زېږوي او د وژند په اړه انساني مکلفیت له منځه.
د قصاص، حدودو او شرعي تعزیراتو په وسېله د نفس ساتنه کیږي او د انساني ژوند د نظام د ګډوډۍ مخه نیول کیږي. المصباح فی مناهج الافتاء ص (**۴۴۵** ) الموسوعة الفقهیة (۲۰۸\۲۸ ).

**درېیم: د عقل ساتنه**

د انسان جوهر او د کرامت محور عقل دی، که د عقل تحفظ ونه شي نو د مکلفیت معیار له منځه ځي، د عقل د ساتنې په غرض د اسلام په مقدس دین کې د شرابو او ټولو مخدرو او مضرو موادو استعمال چې د انسان عقل ترې متضرر کېږي حرام ګرځول شوي دي.
د عقل په خلاف د کوم جرم د ارتکاب په صورت کې په مقدس شریعت کې عاملینوته د اصلاح په غرض د حدودو او تعزیراتو سزا ګاني تعیین شوي دي. المصباح فی مناهج الافتاء ص(**۴۴۵** ) الموسوعة الفقهیة (۲۰۸\۲۸ ).

## څلورم : د نسب یا نسل ساتنه

د اسلام په مقدس شريعت کې سالم او محفوظ نسب لوړ اعتبار لري، په محفوظ نسب باندي انسان معروف النسب شمېرل کېږي، د وراثت، حضانت، عاقليت او داسي نور حقوق په ښکاره نسب پوري اړه لري.

د نسب مجهوليت له يوه پلوه شرعي عيب دی، له بل پلوه د وراثت، حضانت، عاقليت او داسي نورو لوړو حقوقو څخه بې برخي کېږي، د نسب د ساتنې په غرض د اسلام مقدس دين زنا حد لازم کړی دی، چې اختلاط او نسل دګډ وډي مخه ونيوله شي تر څو يو انسان د سپېڅلي سالم نسب څښتن وي. المصباح فی مناهج الافتاء ص(۴۴۵) الموسوعة الفقهية (۲۰۸\۲۸).

د اسلام مقدس دين ددې لپاره چې د انسان په عصمت ، عزت او نسب باندي کوم څوک د زنا تور داغ ونه لګوي ، او شرعي اعتبار يې معيوب او مجروح نکړي د قذف حد مشروع کړی دی.

## پنځم: د مال ساتنه

که د مال تحفظ ونه شي معاش او معاد يعني د دنيا او آخرت دواړو منافع همدا راز انساني مکلفيت له منځه ځي.

د اسلام په مقدس دين کې د اموالو تحفظ په درې قسمه شوی دی ، لومړی د ايجاد اړخ دی، دويم د اعتبار اړخ دی ، درېيم د تحفظ اړخ دی.

د اموالو د ايجاد لپاره د جائزو معاملاتو ټولي انواعي او تجارتي راکړي ورکړې مشروع شوې دي.

د اموالو د شرعي اعتبار د تحفظ په غرض په ټولو ناروا او حرامو معاملاتو بنديز لګېدلی دی، ځکه د لمانځه، روژې، زکوت، حج او ټولو عباداتو ثواب او مقبوليت د اموالو په سپېڅلتيا او حلال والي پوری تړلی دی ، که اموال او ارزاق پاکيزه او حلال نه وي نو لمونځ، روژه، زکات، حج، صدقات او عبادات نه قبلېږي او نه کوم ثواب ورکول کېږي.

د اموالو د تحفظ په غرض د غلاؤ او شوکماریو د مخنیوي په منظور حد سرقه مشروع کړای شوې ده. المصباح فی مناهج الافتاء ص(۴۴۵) الموسوعة الفقهیة (۲۰۸\۲۸).

**دولتي نظام :**

د نظام د استقرار، قیام او ښه امنیت لپاره تر ټولو بهترین سیاست همدغه دی چې په پورتني ترتیب سره د انسانانو له مشترکو حقوقو څخه ساتنه او پاسداري وشي. پورته پنځو یادوو شوو مهمو اجتماعي حقوق د ساتنې لپاره دولتي نظام او استقرار شرط دی.

**د دولتي**

کله چې د رعیت لپاره پورته حقوق خوندي شي، پخپله ټولنیز امن او استقرار رامنځته کیږي، ښه امنیت تامینیږي، مفاسد له منځه ځي، د جګړو تغر ټولیږي، د رعیت او نظام ترمنځ روابط او اعتماد پیاوړی کیږي او پرمختګ راځي.

په حاضر عصر کې چې په اسلامي هیوادو کې د جګړو او قتال اور غړاند دی همدایې سبب دی چې کافرو او ظالمو قوتونو د مسلمانانو اساسي او ټولنیز حقوق غصب کړي دي، مظلومو مسلمانانو د خپلو مبرمو حقوقو د اعاده کولو په غرض د ظالمانو په خلاف د قرآن او حدیث په رڼاکې په سپېڅلي اسلامي جهاد لاس پوري کړی دی.

غاصب قوتونه په سوال، زاریو، مظاهرو، او انتخاباتو باندي د چا غصب کړي حقوق نه ورکوي، او نه یې تر اوسه کوم چاته ورکړې دي، بلکې د اسلام په تاریخ کې غصب شوي حقوق د خدای جل جلاله د سپېڅلې لارې مقدس جهاد په وسیله بیرته تر لاسه شوي دي. اوس به هم له همدې لارې ترې اخیستل کېږي، همدا سبب دی چې قرآني آیتونو او نبوي حدیثونو ددې غاصبو، قابضو او ظالمو کافرانو او د هغوی د اجیرانو په خلاف د سپېڅلي جهاد د وجوب او لزوم امر ورکړی دی.